بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

# رَّبِّ زِدْنِی عِلْما

اے زما پروردګاره! زما پوهه نوره زياته کړې –

**علم را بر تن زنی مارے بود**
**علم را بر دل زنی یارے بود**

مرشد ما حضرت مولانا رومؒ

”علم کۀ د تن پرستارئ د پاره وي خو مار ترې جوړ شي
په علم کۀ د زړۀ دُنيا ودانه کړې شي نو يار او مددګار شي“

# حکایاتِ عثمانی

لیکونکے: ملک محمد عثمان
ادارت:محمود انور
پښتو ترجمه: م۔ ر۔ شفق

وړومبے اشاعت: ستمبر2022

ISBN 978-627-7523-00-8

**دارالحکمة الخالدیه**

مکان نمبر 91 وېلی ویو روډ ر فیع بلاک فیز 8 بحریه ټاؤن
راولپنډی پاکستان

صدر : ملک محمد عثمان
نائب صدر: محمود انور

فون: 92-336-5920218+

فون: 92-315-6468475+

malik_muhammadusman@yahoo.com
Mehmood.anwar@gmail.com





# وړاندې ټکي

د الله تعالٰي توفيق، د رسول اکرم ﷺ په عنايـاتو، د اولياء، بزرګانو څخه په استفاده او د عزتمندو استاذانو نه د تعليم او زده کړې نه پس د دې حکايتونو پېښ کولو جوګه شوم –

دا سل حکايتونه چې نفسياتي، معاشرتي (ټولنيز) نظرياتي او روحاني اړخونو سره اړه لري، هيله ده چې د هر عمر او د هر صلاحيت جوګه ښاغليو د پاره به يوه غوره ډالۍ وګڼلې شي –

حکمت (علم – پوهه) د مومن مسلمان ورک شوے ميراث دے – د دې حکايتونو لوستنه د دغه ورک شوي ميراث ترمخه پکار ده –

زۀ دلته په خصوصي توګه د ښاغلي محمودانور صيب ذکر کول غواړم چا چې په ډېر کړاؤ محنت او په زياته روحاني جذبه کتابت، ګرافکس او خپرؤنه شوني کړه – "پرته" له دې، د دې حکايتونو بيا اردو کتنه (پروف ريډنګ) کښې ئې ماسره کومک وکړو – الله تعالٰي دې د دوي دا زيار قبول کړي او د دوي درجات بلند کړي–

دې سره زۀ د زړۀ د اخلاصه د ښاغلي م-ر-شفق صيب ډېر مشکور يم چې هغوي زما په خواهش د دې کتاب اُردو نه پښتو کښې ترجمه وکړه – په دې موقع د ښاغلي سيدفرزندعلي هم ډېره مننه چې د دې کتاب د پښتو ترجمې د ټائپنګ د پاره ئې ډېره هڅه وکړه او بيا ئې ما سره د دې پروف ريډنګ هم وکړو –

ليکونکي (راقم الحروف) ته د خپلې نيمګړتياوي پُوره احساس دے – داسې ټول تجويزونه به په ښۀ زړۀ قبلولې شي چې دې کتاب کښې شته نقصونو ته پام راګرځوي -

**ملک محمد عثمان**

# وړاندې تکې

په دې کتاب "حکایاتِ عثمانی" کښې ملک محمد عثمان صېب په ښائسته ډول ساده او اسانه ژبه کښې، امروزه ژوند کښې د پېښېدونکو پېښو او قصو نه د نفسیاتي معاشرتي، نظریاتي او روحاني حکمت د تعلیم ورکولو تابیا کړې ده —

ملک صېب سره د نوي (90) لسیزې راسې یو پوخ تعلق جوړ شوے دے — او ما تل د هغهٔ د ژوَر فکر او تدبیر حســنِ اخلاق او زړهٔ پورې شخصیت نه سبق اخستي او د خپل ژوند چارې مې سمې کړې دي —

مارچ 2021ء کښــې چې ملک صـــېب په خپل فېس بک (مخ پاڼه) د حکایتونو شریکولو سلسله شروع کړه نو زما په زړهٔ کښې خواهش پېدا شو چې زهٔ هم د دې پروژې یوه حصه شوې او بیا مې ملک صېب ته د خپل خواهش اظهار وکړو چې هغوي ومنلو او ما ته ئې اجازت راکړو چې د دې کتاب ترتیب کولو، پروف ریډنګ ، ګرافکس او خپرؤنې پحقله د چارو کتنه وکړم او زهٔ شکریه ادا کوم د عامر شهزاد صېب چې د دې کتاب کمپوزنګ ئې وکړو او د نمره خان صاحبې مننه کوم چې د زړهٔ په مینه ئې د دې کتاب په ګرافکس (کړهٔ وړهٔ) کار وکړو —

د ملک عثمان صېب نګرانۍ کښې د مسودې بیا کتنې (پروف ریډنګ) په مهال کښــې ما څو ځله دا کتاب ولوســتو — او د ملک صـــېب د علمې لاربښــودنې په ســبب ما ته د ژوند ډېر پټ حقیقتونه راڅرګند شـــو — په خصوصي توګه د دې خبرې ادراک حاصل شو چې اعلٰي انساني شعور او اعلٰي انساني اخلاق د یو بنده د روح بېدارولو سبب شي چې انسان د دنیا د معمولي ژوند نه ازاد کړي او د ژوند اصـــل مقصـــد په لورې ئې بوځي- د دې مقصد د پاره د ملک صېب لیکلي شوي دا تصنیف یقیناً چې یو بهترین کاوش دے — زهٔ د ملک صـــېب د پاره دعاګو یم چې الله تعالٰي دې ورته د دې محنت او کړاؤ بهترینه صـله وروبخښـې او مونږ ته دې د هغوي د نورو تصنیفاتو نه د فېض تر لاسه کولو وس توان راکړي — آمین

**محمود انور**

# د حکایتونو فهرست

# د دنیا پور سکول

دنیا پور په یوه پراخه پلنه رقبه خور شوے ښار دے چي نۀ یواځې په جغرافیائي لحاظ مشور دے، ولې دې کښې د ژوند د روزګار قسماقسم طریقي او موقعي هم شته –




د دې دنیا پور په یو سکول کښې د اول نه لسم پورې کلاسونه وو – د هر کلاس د پاره جُدا جُدا کمره وه – بېلو بېلو استاذانو خپل خپل مضمونونه ښودل – ځیني استاذان پکښې داسې هم وو چې د یو نه په زیاتو مضامینو ئې لاس بر وۀ –

یوه ورځ د اول کلاس ځیني شاګردان د لسم کلاس د کمرې کړکۍ سره ودرېدل او دننه ئې کتل – دننه کلاس ته سبق ښولی شو – او یو استاذ د لسم کلاس هلکانو ته سبق ښودلو – د کوچني جماعت ماشومان تر ډېر ساعته کړکۍ سره ولاړ وو- غوږ ئې ایښے وۀ – خو هیڅ پرې نۀ پوهېدل حېران دریان خپل کلاس ته واپس لاړل –

ګو چې د دنیا پور په دې سکول کښې د اول نه د لسم پورې ټولو ماشومانو یونیفارم یو شان وۀ خو د دوي پوهه د خپل خپل کلاس په حساب درجه په درجه مختلف وه -

| | | |
|---|---|---|
| اشارې: | | |
| دنیاپور | : | دا دنیا |
| اول کلاس | : | د پوهې وړومبے پړاؤ |
| لسم کلاس | : | د پوهې ترقیافته پړاؤ |
| یونیفارم | : | په ښکاره یو شان په نظر راتلل |

# کوپره، شادو او لومبړه

یوه ورځ یوه لومبړه یو جزیرې سره تېرېده، هلته په ګڼ شمېر کښې د کوپرې ونې وې، دې ولیدل چې یوه شادو کوپره شوکوي، چکې راوباسي او خوري ئې او د کوپرې پوستکي شادو بل خوا غورزوي –




لومبړې چې دا وکتل نو کوپرې ئې راغونډول شروع کړل او یوې جنګې سره یې د کوپرو انبار ولګوؤ – بیا په دې فکر کښې شوه چې د کوپرو دا ډېرے به خپلې سمستې ته څنګه رسوي یو چل ئې وکړو پخپله خله ئې یوه ګُوره جنګې ماته کړه او ټولې کوپرې ئې د جنګې د پاسه کېښودې او خپلې سمستې ته ئې راښکلې، په دې عمل ئې خلهٔ او پنجې ژوبل شوې او بدن ئې په خاؤرو کښې لېت پېت شو او په بدحال شوه–

په لاره کښې ئې يو هوښيار هاتي سره ملاقات وشو – هاتي لومړبې ته ووې دا کوپرې چرته وړې! لومبړې ورته ووې ما وليدل چې شادوګانې کوپرې خوري او زۀ ئې خپلې سمستې ته رسوم – هاتي ورته ووې شادو خو د دې چکې خوري د دې د پوستکو بوج خو نۀ وچتوي او لومبړې خو کوپره له سره خوري نا، نو بيا د دې بېکاره کړاؤ خوارۍ مطلب څۀ؟

اشاره:علم د دې مغز چکۍ (Essence) نوم دے چې زړۀ کښې کښېني علم د کتابونو بوج او القابونو ته نۀ وائي

# د خودستان کورونہ

خودستان یو ریاست دے – دي کښې حکومت خبردارے ورکړے دے چې د کورونو نقشې به په یو خاص طرز وي د کومو کورونو ودانې چې د منظور شوي نقشې مطابق نۀ وي هغو کورونو ته به د تکميل سند نشي ورکولے –

د یو کور جوړولو د پاره به معیاري نقشه وي – په دې ډېر بحث وشو او د پوره سوچ کولو نه پس یوه بنیادي نقشه جوړه کړې شوه – دا نقشه به د ریاست د ټولو کورونو د پاره د حوالې په توګه پکارولې شي –




دې نقشه کښې لازمي وګڼلې شوه چې د کور شا ته کمرو او داخلي دروازې تر مینځه دې یوه خاص فاصله وساتلې شي – داخلي دروازه به یو ارت انګڼ کښې پرانستې شي او راتلونکے سړے به اول انګڼ ته ننوځي بیا چې د غولي نه تېر شي نو د کوټو مخې ته براندې ته به ورسي – بیا چې د براندې نه ورتېر شي نو د شاته کمرو (کوټو) دروازې ته به راشي –

دغسې شاته کمرې ته رسېدو د پاره څلور رکاوټونه وو، داخلي دروازه، پلن غولے، برانډه او د شاته کمرې دروازه ــ د دې ټولو پړاؤنو نه چې تېر شي نو سړے به هله شاته کمرې ته ورسېدې شي ــ

د خودستان رياست ټولو خلقو د نقشې ډېره ستائينه وکړه هغوي په دې رسېدلي وو چې دا نقشه کور کښې داخلېدونکي ناګهاني څۀ څيز نه تحفظ ورکولے شي ــ داخلي دروازه او د شاته کمرې ترمينځه رکاوټونه د دوي د پاره د فاصلې بندوبس کوي او دا فاصله د سکون باعث وه ــ

| | |
|---|---|
| اشارې: | |
| خودستان | :انساني شخصيت |
| داخلي دروازه | :د احساساتو او جذباتو داخلېدو ځاے |
| داخلي دروازه او د شاته کمرې فاصله | : د شخصيت ظرف |
| شاته کمره | :مرکزي شعور، د شخصيت مرکز، زړۀ |

# د خاؤرو بلبل

یو آرټسټ (مصور) د خاؤرې نه بلبل جوړ کړو، د لرې نه به هر سړي چې کتل نو دا به ئې اصلي بلبل ګڼلو – چې نزدې به ورله راغے نو معلومه به شوه چې دا خو د خاؤرې نه جوړ نقلي بلبل دے –




چې ظاهري رنګ روغن ئې د بلبل دے – خو د بلبل دننه ذات او صفت په حواله پکښې هيڅ هم نشته –

نۀ پکښې د بلبل مازغۀ وو او نۀ ئې ګل او ګلزار سره څۀ تعلق وۀ –

اشاراې:

| | | |
|---|---|---|
| د بلبل ظاهري ډول | : | ظاهري حواس |
| د بلبل باطن | : | داخلي حواس |
| ګل و ګلزار | : | د کائنات لطيف سوز |

# برندے (لټو)

یو ماشوم سره ښائسته برندے (لټو) وۀ، د پاڅه پرې ښائسته نخښې جوړې وې – ماشوم به چې برندے په زوره چورلوۀ نو چورلېدو کښې به د پاڅه یوه نخښه هم صفا نشوه لیدې –




تېز چورلېدو کښې به د برندي خپل اصلي ذات په دې چورلندي کښې ورک شو – خو چې کله به دا برندے د چورلند (ګردش) نه رابهر شو او ټیکاؤ به شو نو اصل کړۀ وړۀ به ئې رابښکاره شو –

اشاره:کوم خلق چې د زمانې ګردش کښې له حده زیات ورګډ شي نو د دوي نه خپل ذاتي اوصاف هم پټ شي او کۀ دغسې لکه د برندي چُورلي نو خپله پېژندګلو به ئې هم ورکه شي -

# هوس

یـو بانډیسـي (کلـي وال) سـره یـوه بیـزه وه – چـې څـۀ زیاتـه خـوراکي وه – ټوله ورځ به ئـې ګیـا بُوتـاوه خوړلـه خـو خېټـه بـه ئـې ډکـه نـۀ شـوه – دغسـې یـوه ورځ د سـحر نـه تـر ماښـامه څرېـده لکـه چـي د "جـوع البقر" (لوږې) په رنځ اخته وه – نۀ مړېده –




سـري ماښــام د بانډیســي د کــوټې ور پرانســتے وۀ – دا دننــه ورغلــه، کوټـه کښـې د دانـو بـوجۍ وه، پـه غاښـونو ئـې بـوجۍ سـورۍ کړلـه او دانـې خـوړل ئـې شـروع کـړل – لـه حـده زیـات خـوراک سـره ئـې خېټـه وپړسـېده، غـولي تـه واپـس راغلـه – سـر پـرې ورګرځـېدو، راپرېوتـه، خېټه ئې وپړسېدله او د خلې نه ئې زګونه ختل –

کلـي وال چـې دا قیصـه ولیـده نـو پـوره وس چـار ئـې وکـړو چـې د دې ځـۀ عـلاج وکـړي خـو بیـزه (چیلـۍ) د مـرګ پـه غـاړه وه، قصـاب خـانې ته ئې بوتله -

اشاراې:

| | | |
|---|---|---|
| کلیوال | : | انسان |
| بیزه | : | هوس |
| خېټه پړسېدل | : | په انسان هوس سورېدل |
| قصاب خانه | : | انجام |

# د بهارونو ځوے

قیصه د یو ګلشن ده
چې پکښې وو راشه درشه
د سپرلو او خزانونو
بهارونه چې راتلل به




خزانونه به وتل بیا
شو به وار د خزانونو
تیارے کړو بهارونو
خو یو ځلې داسې وشو
خزانونو سره ونښت

يو زوے د بهارونو
تر صدو داسې کېدله
خو څۀ پوخ دستور نۀ دے
مونږ ته تګ منظور نۀ دے
بس دا ګلشن زمونږه دے
دا ټول وطن زمونږه دے

اشاره:يو رسم پخوانے هم کېدے شي خو ضروري نۀ ده چې هغه صحيح هم وي –

## د روح معده

د يو زلمي رنګ زېړ شو نو فکر واخستو – يو هوښيار مشوره ورکړه چې سېب (مڼه) خوره – دې کښې چې کوم وټامنز دي ستا رنګ به بيا سُور کړي – زلمي په سېوانو خوړلو شروع وکړه خو په رنګ کښې ئې څۀ فرق رانغے – سېو خوړلو سره اپوټه د هغۀ طبيعت دروند شو –




يو بزرګ ورته ووې اينه خوره، دا به ستا بدن کښې وينه زياته کړي – هغۀ د بزرګ ومنله اينه ئې وخوړله – خو په دې هم ښېګړه وۀ نۀ شوه او اپوټه د دۀ خېټه خرابه شوه –

چې کمزوري زياته شوه نو ځيني دوستانو يو طبيب له بوتلو ـــ طبيب په غور معائنه وکړه وئيل ئې ستا معده صحيح کار نۀ کوي او تا له د معدې د علاج کولو سخت ضرورت دے ـــ د معدې سمېدو نه پس به څۀ خوراک تاله طاقت درکړے شي ـــ

زلمي د معدې علاج وکړو او بيا ئې صحت مند خوراکونه خوړل ـــ لږه موده کښې تکړه شو او د څهرې سُرخي ئې هم بېرته راغله ـــ

| | | |
|---|---|---|
| اشاره: | | |
| رنګ زيړېدل | : | اخلاقي او روحاني کمزوري |
| سبو، اينه | : | عبادتونه - دعاګانې |
| معده | : | د روح عبادتونو هضمولو توان |
| علاج | : | خپل ځان يو معياري، اخلاقي او روحاني نظام کښې ورګډول |

# ښکر او سرمایه

د يـوې مېښــې پــه سـر دوه تېـرۀ ښـکرونه وو – چـا تـرې پوښـتنه وکـړه دا ښــکرونه دي پــه ســر د څــۀ د پــاره ښــکلي ايښــي دي – مېښــې ووې زمــا پــه سـر کښــې ســرمايه ده او دا ښــکرونه د هغــه ســرمايې حفاظـت




کـوي – پــه دې خبـره تپـوس کـوونکي ووې، سـتا اصـل سـرمايه خـو پــې (شــودۀ) دي چــې هــره ورځ ســتا د تېونــو نــه ايســتلي شــي، او تــۀ ورته چپ ولاړه ئې –

اشارې:
سرمايه : ځاني عقلي صلاحيت
ښکر : په عقلي صلاحيت زياته تکيه کول
پې : روحاني ذوق چې د عقلي توان صلاحيت نه غوره صلاحيت دے
پې ايستل: ژوند کښې د روحاني ذوق ترلاسه کولو دورانيه ختمېږي

# د کيکر ځوے

ځنګل کښې د کيکر يوه لويه اونـه پـه لـوے شـان کښـې ولاړه وه – هـر قسمه تاؤدۀ ساړۀ ئې زغمل خو استقامت کښې ئې فرق نۀ راتلو – يـوه ورځ د کيکـر يو زوي د خپل پلار نه تپوس وکړو چې مونږ د څومره مودې پـورې پښـې پـه زمکه کښې ښخې کړې ولاړ يُو – مونږ له هم پکار دي چې د نورو زنده سرو په شان ګرځو –

کيکر، زوي ته جواب ورکړو – زمونږ رزق زمکـه او اسـمان مـونږ تـه پرلـه پسې راکوي– د رزق په لټون کښې مونږ اخوا دېخوا د منډو وهلـو نـه خـلاص




يُو او بيا دې ته وګوره دا انسانان او دا څـاوري پخپلـه زمـونږ. خـوا لـه راځـي، مارغان زمونږ د ياخه جالې جوړوي د هواګانو ډيوټي ده – زمـونږ پـه څنـګ کښې ځانګي، وريځو ته حکم دے چې زمونږ د پاخـه ووريـږي – دا ټـول هـر څۀ زمونږ د استقامت، برکت دے او دا استقامت مونږ تـه خـوږ او ګـران دے –

اشاره:د استقامت يوه نه يوه ورځ ښۀ نتيجه برسېره شي –

# درزيِ او د ګنډلو مشين

يو درزي به سحر وختي دکان پرانستو او تر ماښامه به ئې کپړې ګنډلې – د سحر نه تر ماښامه پورې به ئې مشين چلوؤ او څۀ په ګرانه به ئې يوه جوړه کپړه تيارې کړه – بيا ئې په مشين د بجلۍ موټر ولګوؤ دې سره کار کښې تېزي راغلله اوس به ئې د ورځې دوه جوړې تيارولې –




دۀ زيات کوشش وکړو چې د دې نه هم زياتې کپړې وګنډلې شي خو د دۀ په توان کښې نوره اضافه وۀ نۀ شوله –

اصل کښې د دۀ په دکان کښې د لګېدلي ګړيال حرکت د ګنډلو د مشين رفتار او د دۀ مهارت د دې نه غوره نتيجه پېدا کولې نۀ شوه نو په هر حال کښې به ئې هم په دې بس کوؤ –

| | | |
|---|---|---|
| اشارې: درزي | : | انسان |
| د ګنډلو مشين | : | دنيا کښې د انسان ځانګړې صلاحيت |
| د بجلۍ موټر | : | پرمختګ |
| ګړيال | : | دې جهان کښې ورکړې شوي فرصت |

# د رامو ټانګه

رامو سره د یو ښهٔ نسل اس وهٔ – هغهٔ ئې ټانګې سره تړلے وهٔ – او دا ئې د روزئ ګټلو ذریعه وه –

یوه ورځ رامو خپل اس ته ووې چې په ولایت کښې د اسونو یو زغل وي چې "ډربي" ورته وئیلي شي – دې زغل کښې څو اعلٰی قسمه اسونه برخه اخلي – د رامو په خبره اوریدو د اس غوږونه لک شو –




بیا رامو ووې "ډربي" ګټونکي اس ته د کروړونو روپو انعام ورکولي شي – اس چې دا واؤریدل نو اول خو چپ شو – بیا ئې ناڅاپه رامو ته مخ راواړولو، وئېل ئې: مونږ اسونه نهٔ خو د پېسو په چل پوهیږو او نهٔ مونږ ته د پېسو څهٔ ضرورت وي –

نو بیا د کروړونو روپو دا انعام د څهٔ د پاره –

رامــو ووې: لېونیــه! دا پېســې ګــو چــې اس وګټــي خــو ورکــولې د اس مالک ته شي –

اشاره: د محنت مېوه د محنت کوونکي (هم جنس) د پاره پکار ده ګني نو دا به د هغهٔ د ذات ته فائده نهٔ ورکوي -

# ویونکي موټر

یو ګاډے (کار) په شغ لاهور ته ورسېدو، لاهور ته رسېدو سره "فرنټ سیټ" (مخکښي نشست) ووې، واه! څومره په اسانه لاهور ته ورسېدم، بالکل تازه – ډش بورډ هم ځان ته غاوِره شو چې پوره چمک دمک کښې دے او په څهره ئې د سفر ستړی والے نشته –

بیا دواړو د ټائرونو بښهٔ غیبت وکړو چې دا څهٔ ګنده مخلوق دے – پته نشته په کوم کوم ګند کښې ئې پښې وهلي لاهور ته رارسېدلي وي –




ټائرونو چې دا واؤرېدل نو وې وئېل بې شکه موټر د څنګه څنګه حالاتو نه راتېر شو – لاهور ته راورسېدو او موټر په غلاظتونو ابته او ککړ یُو – خو کهٔ موټر دا ټول څهٔ نهٔ وي زغملې نو تاسو خلق به داسې صفا او پاک ساک لاهور ته څنګه رسېدلئ –

د ګـاډي (موټرکـار) چلـوونکي چـې پـه لاس کښــې ئــې چـابي (کـونجي) وه چـې د دوي ټولو خبرې اورېدلې نو مُسکے مُسکے کېدلو ـــ

اشاره:کوم خلق چې د کائنات حقيقي نظام پېژني، هغوي په مرتبو کښې د فرق باوجود د ټولو درجو د مخلوق يو شان قدر کوي ـــ

# زمان او مکان

د غرونــو پــه میـنځ کښــې یـوه نــالئ د قطــب نــه سـوېل طـرف تــه بهېدلــه – د نــالئ تنــه ښــۀ پلنــه وه ، د اوبــو رفتــار ښــۀ تېــز وۀ – او د نالئ د بهاند شور په ټوله وادئ کښې اورېدے شو –

هــره ورځ بــه د غرونــو د اطرافــو ځخــه ونــې رامــاتې شــوې – نــالئ کښــې بــه راپرېــوتې او اوبــو کښــې بــه د قطــب نــه ســوېل




طــرف تــه بهېــدې – خــو یویــه اونــه د نــالئ نــه پــورې پــه غــاړه کلکــه ولاړه وه هغــې بــه خپلــو هــم نفســو تــه کتــل چــې پــه قطــب سوېل بهېدلې خو پخپله د نالئ د ګروت نه بېخي ازاده وه –

اشارې:

| | | |
|---|---|---|
| نالۍ | : | دنیا |
| د اوبو بهاند | : | د وخت سېلان – زمان |
| د نالۍ پاټ | : | مکان |
| د قطب نه سوېل | : | د عمل نه د انجام په لور |
| نالۍ کښې بهېدل | : | د زمان او مکان په ګروت کښې |
| د نالۍ نه بهر ودرېدل | : | د زمان او مکان د نیوکې نه آزاد وسېدل |

# ګرځنده (موبائل) فون

یو هلک چې په هاسټل کښې د استوګنې د پاره لاړ – نو مور پلار ورله یو آئي فون او کنکشن سِم ورکړل – څۀ جېب خرچ ئې ورله مقرر کړو چې خوراک څښاک سره سره خپل فون کښې څۀ بېلنس هم وساتلے شي او




دغسې خپل مور پلار سره ئې رابطه قائمه وي –

هغۀ د فون او بېلنس بې ځایه استعمال کوۀ او مور پلار سره به ئې رابطه کمه کوله او اکثر به ورسره مور پلار ته د زانګ کولو د پاره پېسې هم نۀ وې پاتې –

یوه شپه ناڅاپه د هغهٔ په سینه کښې تکلیف شو — غوښتل ئې چې والدېنو سره تماس ونیسي او خپل تکلیف ورته بیان کړي — خو چې بېلنس ورسره نهٔ وهٔ نو د زانګ وهلو اساني هم نهٔ وه —

غهٔ په سخت تکلیف کښې وهٔ، کمره کښې تنهائي وه — بهر توره تيارهٔ وه او بازار هم بند شوے وهٔ — هغهٔ بې وسه شو او دې بې وسۍ کښې له دې جهانه رخصت شو —

| اشارې: | |
|---|---|
| هلک | : غافل سړے |
| آئي فون | : شعور، خودي |
| سم | : د خودۍ دننه ګوهر چې حقائقو سره تړون پېدا کوي |
| بېلنس | : د خودۍ او شعور د ګوهر استحکام |
| هاسټل | : د دنیا ژوند |
| والدېن | : اعلٰی حقیقت |

# خپله جوړه کړی دنیا

یو نوي جدید ښار کښې په یو نوي هاؤسنګ سکیم کښې یو څو خالي پلاټونه وو – دې کښې د مزکې لاندې د منږکانو ښاریه وه – د مزکې لاندې هغوي غارونه جوړ کړي وو – دغه د منږکانو ټوله




دنیا وه – دې کښې به وسېدل په خاؤرو او چینجو مینجو خوړلو به ئې ګزاره کوله –

یو غټ منږک، زلمو منږکانو ته د دې خبري یقین ورکړے وۀ چې زمونږ د مزکې لاندې دا منږکرانې اصل دنیا ده او د دې نه زیات څۀ ارمان او غوښتنه لټون عبث دے – دې غټ منږک زلمو منږکانو ته دا هم وئیلي وو چې مونږ منږکان به همېشه اُفقي (د ښي نه ګس ته او د ګس نه ښي طرفته) حرکت کوؤ، داسې حرکت چې

عمــودي (بــره تــګ) وي دا بــه زمــونږ د پــاره خطرنــاک وي ــ دغســې ټول منږکان په خندا خوشحالۍ وسېدل ــ

بیـا ناڅاپـه یـوې تعمیـري کمپنـۍ د خـالي پلاټونـو د کنسـتلو کـار شـروع کـړو، ځنګـه چـې پـه مزکـه د وړومبـۍ کـدالي ګـزار پرېوتـهٔ د زمکـې لانـدې منږکرانــه کښــې قیامــت جــوړ شــو ــ ځنګــه ځنګــه چــې کنســته کېدلــه د مزکــې لانــدې د منږکــانو دنیــا تــالا ترغــه کېدلــه بــې وســه منږکـان د خپلـو بـادارانو پـه لـور ور وزغلېـدل خـو هغـوي هـم ویرېـدلي وو ــ حوصـلـه ئــې ماتــه شــوې وه ــ دې کښــې منږکــان د خپلــو ســوړو نه ووتل او بره طرف ته په منډو منډو سړک ته راووتل ــ

دا څــهٔ دي ؟ دوي چــې د بهــر دنیــا رڼاګــانې او پراختیاګــانې ولیـدلې نـو حېـران دریـان شـو ــ دا سـړکونه دا بنګلـې دا آب و هـوا (هـوا، اوبـهٔ) او زړهٔ راښـکون پـه مزکـه دننـه خـو دا د دوي پـه وهـم ګمـان کښـې هـم نـهٔ وو ــ

اوس پــه دې ســتومانه کېــدل چــې د منــږک رانــې بــادارانو دې خامخــا دومـره مـوده بـره حرکـت کولـو او زمکنـي جنـت نـه محـروم سـاتلي وو ــ

اشاره:زیات تر خلق خپله جوړه کړې دنیا کښې پراتهٔ وي او د دې نه غافله وي چې کائنات زیات پراخه او پلن دے او په رنګ او نُور مزین دے ــ

# د بیدار خان سائیکل

بېدار خان له مور پـلار سـائېکل واخسـتو، دې لا وړوکـے وۀ او د سـائېکل چلولو پوره جوګه نۀ وۀ، د سائېکل چلولو په وخت به ئې توله ګډه وډه شـوه او دې کوشش کښې به څو ځله په مزکه راپرېوتو ـــ

ورو ورو لوے شو، په ګډئ به ښۀ توله کښېناستو او سائېکل چلول ئـې زده کړل ـــ اوس سائېکل پوره د دۀ په قابو کښې شو او چې کله او څنګه به ئې



غوښتل ګرځېدو بـه پرې ـــ یـوه ورځ ئـې د سـائېکل د هېنـډل نـه یـو لاس پرېښودو او بیا لږه موده پس به ئې دواړه لاسونه پرېښـودل او سـائېکل بـه ئې چلوو ـــ

کله کله به ئې په زوره پېډل وهلو او دواړه پښې به ئې اوچتې کړې او لاسونه به ئې هوا کښې پرېښودل – داسې به ښکارېدهٔ لکه دې د سائېکل نه آزاد هم سفر کولے شي –

خپل يو دوست ته ئې ووې، زهٔ غواړم چې يوه ورځ مې داسې سائېکل وچلولے چې دواړه پښې او دواړه لاسونه مې اوچت وي، د سائېکل نه آزاد هوا کښې الوتل شروع کړم – دوست ورته ووې داسې خو نشي کېدې – ولې کهٔ داسې کوې نو وهٔ به غورزېږے او زخمي به شې –

بېدار خان په دې کوشش کښې لګيا وهٔ څو ځله وغورزېدو او زخمي شو خو زخمونو د هغهٔ شوق نور زيات کړو –

په دې کوشش کښې په يو ښکلي سحر هغهٔ سائېکل وباسهٔ يو نېغ سړک وهٔ دواړو غاړو ته ئې شينکے وهٔ – په زوره ئې پېډل تاؤ کړو، دواړه پښې ئې وچتې کړې او دواړه لاسونه ئې هم د هېنډل نه وچت کړل او په هوا کښې ئې بره کړل – او ځان له ئې په پورته حرکت ورکړو – سترګې ئې پټې کړلې – عين په دغه لحظه کښې د دهٔ لاس يو اسماني قوت ګېپ ونيولو سائېکل ښکته وغورزېدو او سړک سره يوې کندې ته ورپرېوتولو او بېدار خان په هوا کښې پورته شو –

| | |
|---|---|
| اشارې: | |
| بېدار خان | : په روحاني توګه بيدار سړے |
| سا ئېکل | : بدن – مادي دنيا |
| کنده (کهائي) | : قبر |
| اسماني قوت | : کائنات کښې موجود روحاني قوتونه |

# درزنه لومبړه

د دورستان په ځنګ کښې يوه لومبړه وسېدله، دې د درزنې کار زده کړے وۀ – په ځنګ کښې به چې کله يو ځناور مړ شو نو دې به ترې څرمن وويسته او جامې به ئې ترې ګنډلې – دې به چې دغه جامې واغوستې نو د هر قوم دستوره کښې به ئې ګډون کولو او په خپله کاريګرۍ به ئې فخر محسوسولو –
کله کله به خپل ضمير ملامته کړه چې تۀ داسې ولې کوې؟ هر کله چې تۀ پخپله په ذات لومبړه ئې نو بيا د داسې ځان جوړولو مطلب



څۀ دے – کۀ تۀ ځان ښائسته کول غواړې نو خپل دننه ذات ښکلې کړه – دا نقلي ځان جوړونه وقتي فائده ده، دوام نۀ لري –
لومبړې د خپل ضمير په اواز غوږ نۀ ګرولو او د درزي توب پيشه ئې نۀ پرېښوده –

لوڅۍ درزن

دې بـه دغسـې د ځرمنـو لبـاس ګنـډلو او نـورو تـه بـه ئـې دوکـه ورکولـه – بيـا يـوه ورځ ناڅاپـه داسـې وشـوه چـې لـومړۍ رنځـوره شـوه، ورو ورو نـاروغي زياتـه شـوه – دې مهـال کښـې ورتـه خپـل ټـول شـکلونه راياد شو، کوم چې د دې د ذات حصه نۀ وو –
يـوه زرې شـوه او دا احسـاس ورتـه وشـو چـې ټـول عمـر مـې پـه شـکلونو جوړولـو کښـې تېـر کـړو او کلـه مـې هـم د خپـل اصـل ذات پېژندلو او ښکلي ښائسته کولو هڅه نۀ ده کړې–

| | |
|---|---|
| اشارې: | |
| اصل ذات | :د انسان هغه ذات چې د مرګ نه پس هم قائم وي |
| شکل بدلول | :خپل ځان داسې ځيزونو او عهدو سره دومره منسوب کول چې خپل ذات ئې هېر شي – |
| خپل ځان پېژندل او ښائسته کول | :دې دنيا کښې خپل توان او صلاحيتونه داسې پکارول چې خپل شعور، کائناتي شعور سره هم غږ شي – |

# جبل الكون

د فردين كلي په شمال كښې يو ډېر لوے غر وۀ، د دۀ نوم "جبل الكون" وۀ – د لرې نه به داسې ښكارېدو لكه د زمري او د كلي خلقو به د يو ستر سړي پشان پېژندلو –

يو ځل د كلي خلقو غر ته د نزدې ورتلو فيصله وكړه – د يو څو ورځو سفر كولو نه پس چې د غر دننه ورسېدل نو دوي ته معلومه شوه چې كوم غر دوي يو سړے ګڼلو – په بل اعتبار هغۀ داسې نۀ وۀ –




دوي د غر د پاڅه قسم قسم ځنګلونه وليدل – دې ځنګلونو كښې قسما قسم مارغان، خاروي او درندګان وو –

د غر نه ځيني چيني وتلې چې په تاوېدونکو چورلېدونکو خوړونو په شکل کښې به بهېدلې – پته نۀ لګي د دې لوے غر په سينه کښې نور څۀ څۀ وو، هغوي د دې ټول څۀ په ليدو حېران دريان شو –

کله چې کلي ته واپس راغلل او په شا ئې جبل الکون ته وکتل نو هغسې يو غټ کټ سړے ليدے شو – جبل الکون د يو وګړي پشان کېدل او دې ځانګړتيا کښې کثرت کېدل د خلقو د پاره يو نوے علم وۀ –

ځيني خلق په باقاعده ډول فکرمند شول چې د جبل الکون په وحدت او کثرت کښې ضرور څۀ تړون شته دے – د فردين کلي خلقو فېصله وکړه چې د جبل الکون په سينه کښې د موجود نورو امکاناتو او د امکاناتو د کثرت جبل الکون غوندې عظيم وګړي سره د تړؤن باره کښې به څېړنې کوؤ –

| اشاره:کائنات له يو طرفه وحدت او بل طرفه کثرت دے – د دې وحدت او کثرت د تعلق او تړؤن علم لويه دانائي ده – |
|---|

# دروازه

یـو معمــار د خپلــې اســتوګنې د پــاره یــوه کمــره جوړولــه ـ مزکــه ئــې هواره کړه ـ بنیادونه ئې جوړ کړل او دېوالونه ئې ودرول ـ

د کمـرې دېوالونــه ئــې وچتــول ، تــر دې چــې دېوالونــه د هغــهٔ د سـر نــه لــوړ شــول ـ هغــهٔ پخپلــه د دېوالونــو دننــه طــرف تــه وهٔ، بهــر ولاړو مزدورانــو تــه ئــې ووې چــې نــورې خښــتې دننــه را اولــئ چــې دېوالونــه نــور اوچــت شــي دغســې د کمــرې دېوالونــه دومــره دنــګ شــو چــې د دننه او بهر رابطه ناممکن شوه ـ




د دې معمــار، نــورو خلقــو نــه د ځــان جُـدا ســاتلو جذبــه دومـره زیاتــه وه چــې کمــره کښــې ئــې دروازه هــم جــوړه نــهٔ کــړه چــې څــوک هــم د دهٔ پــه کار کښې مداخلت ونکړې شي ـ




دغسې هغۀ د کمرې بره اوچتېدنکو دېوالونو کښې قېد شو –

بیا پرې ویره راغله نو دننه نه ئې اوازونه وکړل چې ما بهر وباسئ خو د هغۀ اواز دنګو دېوالونو کښې ډوب شو او یو سړے ئې هم مدد له رانغے –

| |
|---|
| اشاره:ځیني خلق د خپل مال، عزت علم او پارسایۍ په چاردیوارۍ کښې د دروازې پرانستلو قائل نۀ وي او د دنګو دېوالونو بندې کوټې په ساه ډوبۍ کښې ئې ساه وخېژي – |




# ستړیټ لائیټ (د کوڅې رڼا)

د یو سړک په غاړه په دنګه ستن سټریټ لائټ لګېدلے وۀ ــ د دې په رڼا د علاقې خواوشا روښانه وه ــ




ټوله شپه به خلق د دې سټریټ لائټ (د کوڅې رڼا) لاندې تېرېدل، دغو کښې ګاډي ، موټرسائیکل او رکشې هم وې او پیاده تلونکي، ښځې، سړي، ماشومان، امیران، فقیران هر څنګه خلقو د کوڅې په رڼا یو شان نهاله وو ــ د کوڅې رڼا به تمامه شپه بلېده او په دې ئې پرواه هم نۀ وه چې د دې د رڼا نه څوک فائده اخلي ــ

اشاره:کۀ ستاسو ذات په رښتیا روښانه وي نو د دې رڼا نه به هر څوک یو شان فائده اخلي-

# د حلوائی دکان

یو هلک د حلوائي دکان کښې نوکر شو – دا د مټهایو او حلوا دکان وۀ – هر وخت به ګڼه ګُونه وه – یوه ورځ دا هلک د پیو لوئ کړي سره ولاړ وۀ – استاد د یشېدونکو پیو په کړي کښې "کړچها" (څمڅۍ) وهله – د پیو نه کوه او بیا د دې نه رنګ په رنګ مټهائي




جوړول وو – هلک د حلوائي نه ناڅاپه تپوس وکرو – استاد: کۀ چرې غواګانو پۍ ورکول بس کړل نو بیا به مونږ دا رنګ په رنګ مټهائي څنګه جوړوو – حلوائي چې د هلک خبره واؤرېده نو لږ سخته لهجه کښې ئې جواب ورکړو – پۍ ورکول د غوا کار دے – تۀ دا غم مۀ کوه ستا کار مټهائي جوړول دي او تۀ صرف دغې ته پام کوه –

| |
|---|
| اشاره:د قدرت به خزانو د شک کولو خوئي (رویه) مۀ ساتئ – انسان له پکار دي چې مخکښ ځي او د خپلې حصې کار پوره کړي – |

# مشروب سازه کمپنی

یوه مشروب ساز کمپني وه ـــ خپل شربت  به ئې په یو وخت کښې درې مختلف قسمه پیک کولو او بازار ته به ئې د خرڅولو د پاره راوړو ـــ یو د ګټې پېکنګ وۀ ـــ دوېم قسم د شیشې او درېم د ټیم




(ټن) پېکنګ وۀ ـــ د شربت قیمت به د پېکنګ په لحاظ جُدا جُدا وۀ ځکه چې یو قسم پېکنګ به د بل نه غوره وۀ ـــ

یو ګاهک د کمپنۍ دغه شربت درې قسمه پېکنګ کښې واخستو ـــ د درېو واړو نرخونه د یو بل نه مختلف وو ـــ خو ګاهک د شربتونو خوند کښې پوټې فرق محسوس نۀ کړو ـــ

په دې ګاهک ډېر وتزنېدو چې خامخا مې درې مختلف قسمه پېک شوي شربتونه واخستل – خوند خو د ټولو يو شان وۀ – افسوس په دې خبره وۀ چې د بهرني پېکنګ تبديلۍ تېرايستم او دننه شربت خو يو وۀ –

اشارې:
دګتي پېکنګ : عام دنيا دار خلق
د شيشې پېکنګ: ظاهري روحاني خلق
د ټين پېکنګ : تش په نوم علمي خلق
مشروب : غېر معياري اخلاق او بنيادي فطري رويې کۀ جامې ئې زياتې بدلې شي، بيا هم يو شان وي نو داسې کۀ يو سړے رنګ په رنګ جامې بدلې کړي ، څۀ فائده نۀ ورکوي او نۀ هغو خلقو ته ښېګړۀ رسوي چې دۀ سره راشه درشه ساتي –

# دبئ هوائی ډګر

په دبئ هوائي ډګر يو مسافر د عطرو (خوشبويو) دکان ته ورننوتو – خرڅوونکې جينۍ ورته مختلف قسمه عطرونه وښئېل – کله به ئې يو عطر بوئي کړو کله بل – چې پرله پسې ئې يو څو خوشبوياني بوئي کړې نو د بوئيولو حِس (قوت شامه) ئې ټپ (جامد) شو او بيا ئې مختلفو خوشبويانو کښې فرق نۀ شو محسوسولې – خرڅوونکې جينۍ چې وکتل نو په يو لوخي




کښې پرته "کافي بينز" (Coffee Beans) ئې ورته وړاندې کړۀ – "کافي بين" ئې بوئي کړۀ –

د دې په تريخ بوئي ئې د ناخوښۍ احساس خو وکړو خو دې عمل سره ئې د خوشبويو بوئي کولو کښې ئې د فرق کولو صلاحيت بېرته راغـے –

خرځوونکي جينۍ (سېلز ګرل) د يو څو عطرو بويولو نه پس د ”کافي بين“ وربويولو عمل يو څو ځله بيا وکړو – تر دې چې مسافر د خپلې خوښې ”پرفيوم“ (عطر) واخستل او هوائي جهاز (الوتکه) کښې خپل ملک ته روان شو –

| | | |
|---|---|---|
| اشارې: | | |
| دبئي هوائي ډګر | : | دا دنيا چرته چې مونږ په سفر يُو |
| پرفيوم (خوشبوياني) | : | اسانۍ ، راحتونه |
| کافي بينز | : | تکليف چې زمونږ پام بيا اسانۍ او راحتونو ته راګرځوي |
| خوشبو اخستل | : | مطمئن کېدل |
| الوت کول | : | په تسلۍ د دنيا نه کډه کول |

# ګیدړ پور

یو ځنګل کښې ګیدړانو خپله جُدا ښاریه جوړه کړې وه – د دې نوم "ګیدړ پُور" وۀ – د دې ښاریې په قائمولو کښې د ګیدړانو د سردار یو فکر کار کړے وۀ چې خپل قوم د ګیدړ ثقافت، ژوند ژواک، افکارو او نظریاتو سره تړلي وساتي – یوه داسې ښاریه چې پکښې مېشته ګیدړان د خپل ثقافت د




پرمختګ د پاره مناسب اقدامات وکړي –

د دې فکر ترمخه د ګیدړانو استوګنو کښې داسې خاؤره خوره کړې شوه چې رنګ ئې د ګیدړانو د رنګ په شان وۀ – دروازو سره د ګیدړانو د سرونو مجسمې ولګولې شوې چې دغسې هر زوړ ځوان کور ته ځي راځي نو د خپل ګیدړوالۍ پوره احساس ورته کېږي –

د ګیدړانو د سردار په حکم د دوي د پلرونو او نیکونو (هډوکي) ډانچې د ځنګل د ګُټ ګُټ نه راټولې کړې شوې او د ګیدړپور په دېوالونو او ونو ځائے په ځائے اوېزاندې کړې شوې – دغسې هغه ګیدړ قوم په پوره ډول د

ګیدړوالۍ په ولقه کښې شو – ګیدړ به پیدا شُو، ګیدړ به زلمے شُو، ګیدړ به زاړهٔ شُو او ګیدړ به مړهٔ شُو – یوه لحظه به د ګیدړوالۍ نه رابهر نهٔ شو – پخپل ژوند ژواک او نسل په نسل به ئې فخر کوؤ – یو ځل داسې وشو یو زلمی ګیدړ ته د بهر دنیا کتلو شــــوق وهٔ – د ګیدړپور نه وتښـــتېدو او مرکزي ځنګل ته راغی – د دې باغي ګیدړ نیولو د پاره دوه ســــپاهي ګیدړان ځنګل ته روان شو – ځکه چې د دهٔ په تښتېدو د ګیدړانو سردار په غضــب کښــې شــو او اعلان ئې وکړو چې دغه زلمي ګیدړ له به عبرتناکه سزا ورکولې شي-

زلمي ګیدړ ته چې پته ولګېده نو بېدار شــو – د ځنګل ازاده فضــا کښــې د وســـېدو نه پس خو ګیدړپور ته د بېرته تلو ســـوال نهٔ پیدا کېدو – د ځنګل بادشاه ته ئې د ګیدړپور د زور ظلم هلته نه د راتښتېدو او د ګیدړ سپاهیانو دهٔ پسې د لټون ټوله قیصه تېره کړه او د پناه اخستو خواست ئې وکړو –

بادشاه د دهٔ د پناه اخستو درخواست قبول کړو او د زمرو په غار کښې ئې ورله د اوسېدو ځاے ورکړو –

کله چې ګیدړ سپاهیانو ته پته ولګېده چې د دوي باغي ګیدړ د زمرو په پناه کښـــې دے نو په چپه خلهٔ ګیدړپور ته واپس لاړل او خپل ګیدړ ســـردار ته ئې اطلاع ورکړه – ســردار د دې په اؤرېدو غصـــه شــو او ډېر زر ئې د باغي ګیدړ ګرفتارولو د پاره زمرو ســـــره د جنګ کولو اعلان وکړو – د ځلوېښتو ګیدړانو یوه دسته ئې تیاره کړه او د ځنګ په لور ئې روانه کړه–

زمرو ته چې د دې لښکر خبر وشو نو مُسکي شو او د ګیدړانو د راتګ په انتظار شو – د ګیدړانو لښکر چې د زمرو غار ته ورنزدې شو نو زمري وغړمبېدل او په دوي ئې حمله وکړه – د ګیدړانو او زمرو په اوازونو ټول ځنګل وکړنجېدو او دې معرکه کښـې څهٔ ګیدړان مړهٔ شـو کوم چې بچ شـو هغوي ژوبل ژوبل ناکام او نامراد بېرته ګیدړپور ته لاړل –

جنګ چې ختم شو نو د ځنګ ځناورو کښې قسماقسم پس پسې شروع شو – د دې پس پسې ختمولو د پاره د ځنګل بادشاه زمري د يوې جلسې اعلان وکړو – او دې کښې د ځينو اهمو اعلانونو اوازه خوره شوه –

په ټاکلې ورځ ټول ځناور راجمع شو – د ګيدړپور استوګن هم ګڼ شمېر کښې شريک شول – د زمري د تقرير کولو د پاره يو لوے سټېج تيار کړے شوے وۀ – زمرے چې سټېج ته راغے نو دۀ د ګيدړپور د ناجائز قيام او د زمرو او ګيدړانو د جنګ په حواله ټول ځناور اګاه کړل – ټول ځناور، په پوره ډول بادشاه ته متوجۀ وو –

د تقرير په اخر کښې بادشاه د دريو نکتو اعلان نامه جاري کړه :

(۱) د هيڅ يو قوم ځناور به خپل نسل د خودساخته حدونو او رسوماتو نۀ پابند کوي-

(۲) ځنګل کښې به ژوند د فطرت د بنيادي اصولو مطابق تېرولې شي –

(۳) د ځنګل تازه آب و هوا فراختيا او موقعې به د هر قوم بنيادي حق ګڼلې شي –

د دې اعلان نامې په اورېدو د ځنګل ځناور د خوشحالۍ نه په ګډا شو – او ځنګل کښې د جشن ننداره شوه – د دې اعلان نامې نه يو څو ورځې پس د ګيدړپور ښاريه ورانه ويجاړه شوه–

اشارې:
ګيدړ پور :خودساخته عقيدې، رجعت پرستي، کم نظري، فرقه پرستي، نسلي تعصب
د ځنګل پراختيا : د اعلٰی مقصدونو ژوند – کائناتي شعور او ټول امکانات پکارول

# لفټ

یــو ســړے ســل چتیــزه اســماني عمــارت تــه ننوتــو ــ دې عمــارت کښــې د دنیــا د لویــو لویــو کمپنــو دفترونــه وو ــ هغــهٔ لفــټ تــه نــزدې ورغــے، لفــټ تــه ورننوتــو او پــه مختلــف بټنــو بــه ئــې ګــوتې لــه زور ورکــوؤ ــ لفــټ بــه کله بره تلو، کلـه بـه ښـکته راتلـو ــ لکـه چـې یـو منـزل ئـې نـهٔ وهٔ تـاکلے ــ لفـټ بـه چـې پـه کـوم چـت (بـام) ودرېـدو ــ دروازه بـه پرانسـتې شـوه نـو د هغــهٔ مخــې تــه بــه د یــوې کمپنــۍ دفتــر وهٔ ــ دې بــه لفــټ کښــې ولاړ وهٔ او




دفتـر تـه بـه ئـې کتـل ــ پـه بلـه بټن بـه ئـې ګـوتې لـه زور ورکړو ــ دغسـې پـه یـو څـو بـامونو تېـر شـو ــ خـو کـوم دفتـر تـه ورنغلـو ــ لکـه د اجنبـې (ناشـنابنده) ښـکته پورتـه ګرځېـدو ــ څـهٔ سـاعت پـس د ګـڼ چتیـزه عمـارت امنیتي عملې (سیکیورټي) تـه پتـه ولګېده چې یـو سـړے پـه لفـټ کښـې بې مقصده ګرځي ــ نو سړے ئې ونیولو او د لفټ نه ئې بهر وباسلو ــ

اشاره:ځیني خلق د فکري او الٰهی علمونو باره کښې دا قسمه رویه ساتي ــ ژور تړون نهٔ پیدا کوي ــ او هسې ښکته پورته کیږي ــ

# د چمن شیپول

د یو ښار په مینځ کښې ښائسته باغ وۀ – چې پکښې شنۀ شنۀ واښۀ د "ګلونو کیارۍ، دنګې دنګې اونې او د مېوؤ بوټي وو – د باغ مختلفې حصې شنو شنو باړو له یو بله جُدا کړې وې –

یوه ورځ د نوې نور شپول لګولو ضرورت پېښ شۀ نو د بوزغلي خانې نه د شپول واړۀ واړۀ بوټي راوړلې شو او په یو قطار کښې تیار شوي پټي کښې ولګولې شو – دې پټې ته اوبۀ څره ورکول شروع شو او لږه موده کښې د شپول دا بوټي رالوئېدل –

بوټي ډېر خوشحاله وو چې د بوزغلي خانې نه باغ ته راغلۀ او دلته ښۀ اوبۀ خواړه راکولې شي– اوس چې د دوي غړانګې نورې وچتې شوې نو د باغ مالي دوي څۀ د بره نه او څۀ د یوې خوا بلې خوا نه پریکړل – چې دغسې دوي پخپل قد او حد کښې وي – په دې پرېکولو راپرېکولو بوټو ډېرې چغې سُورې ووهلې خو دوي پښې په زمکه کښې ښخې وې او د تېښتې رؤ نۀ وۀ – بیا به دا ظلم هر څو ورځې پس دوي سره کېدلو – ورو ورو دا بوټي دې خرئېلو رېبلو سره اموخته شو او د ظلم احساس ئې د زړه نه ووتلو –

یو ځل داسې چل وشو چې د باغ مالي ناروغه شۀ او یو څو ورځې د کار د پاره باغ ته رانغلو – دې مهال کښې بوټي د نۀ رېبلو او نۀ پرېکولو له امله تنګ غوندې شو – او په دې انتظار شو چې مالي به کله راځي چې د دوي څانګې وزرې پرېکړي او لږ په ارام شي –

د باغ په یو ګُټ کښې ولاړه دنګه اونه چې په باغ ئې ژور نظر وۀ – د باړ د بوټو په دې رویه غمګینه شوه چې دوي د خپلو تاندېدو د مخ نیوي عوامل څنګه قبول کړي؟ او دې بوټو په ځان کېدونکي ظلمونه، د ځان د پاره دارو ګڼلي دي او خپل ځان ئې ورته نیولے دے –



اشاره:کهٔ چرې انسان پرله پسې د جسماني نفسياتي يا روحاني استحصال ښکار وي نو ورو ورو دغه حالت سم وګڼي او قبول ئې کړي –

# کسان او څخې

د یو کسان غوا څخې وزیږولو، دۀ څخې د غوا نه بیٔبل وتړلو – او پیو رودلو ته به ئې نۀ پرېښودو چې زیات پې د دۀ د پاره پاتې شي – څخي ته تکلیف وۀ خو د دې خبرې ادراک ورته نۀ وۀ چې کسان د دۀ حق وهي او پخپل خیال کښې ئې ښۀ ټوپونه وهل –

څخې چې لږ لوے شو نو کسان د غوا نه بالکل جُدا کړو – ګو




چې د هغۀ د پیو څښلو عمر لا باقي وۀ – په وښو ګیاه خوړلو ئې اموخته کړو – څخي ته بیا هم ادراک نۀ وۀ او ښۀ ټوپونه ئې وهل –

څخې چې زلمے شو نو کسان د پیسو ګټلو د پاره په قصاب د خرڅولو فیصله وکړه –




ځناورو د کسان په اراده څۀ پوهه شو خو دا څل ئې هم ادراک ونکړلے شو او هغسې ئې تېرپونه وهل –

يوه ورځ قصاب د دۀ بوتلو له راغے – اول خو دې ناشنا سړي سره تلو ته نۀ جوړېدو خو بيا ورسره تلو ته تيار شو –

قصاب په يوه باړه کښې وتړلو چې کله ئې وار راشي حلال به ئې کړي – دلته هم ځناور د خپل عاقبت (انجام) د حقيقت ادراک وۀ نۀ کړو او تېرپونه ئې وهل –

بيا اخر هغه ورځ راغله چې قصاب دې پرانستو او ذبح خانې ته ئې بوتلو –

اشارې:
ځناور او دانګې تړپکې : د ښکته سطح بې معنې ژوند
ادراک : د تلپاتي ژوند شعور چې د ښکته سطح ژوند نه د خلاصېدو درس ورکوي
قصاب : اجل – د مهلت اختتام –




# د وریځو سردار

د وریځو یوه ټوله یو ښار طرفته ورتله د دوي په جلال په ښار توره وریځ خوره شوه – سردار باران ته د وریدو حکم ورکړو – د سترګو رپ کښي په شـپېو باران شـروع شـو – د ښـار دېوالونه، او ورونه په باران لوانده خوشته شو –




د وریځو سـردار د بره نه په دوربین کښــي کتل د هغه نظر د ښــار لارو کوڅو کښي او په سړکونو پرتو د خاؤرو ښځلو په ډهېرانونو پرېوت، هغهٔ د باران څاڅکو ته ووې – نور په تېزه وورېږئ چې دا خاؤرې خزلې او ډهېرانونه مخې سره وبهېږي او کوڅې او سړکونه هم صفا شي – د باران څاڅکو ښهٔ زور ولګولو خو د خزلو ډهېرانونه په ځاے پراتهٔ وو –

د وریځو سردار چې دا ووکتل نو نزدې د دریاب سردار ته ئې خط ولیکلو – چې ښــار کښــې د خلقو د بدنظمۍ په وجه په سـړکونو او کوڅو کښــې د خزلو سخا ډهېرانونه پراتهٔ دي – زمونږ باران ورونه دېوالونه صفا کولې شي خو دومره سخا ګنده ډهېرانونه لرے کول زمونږ په وس کښې نهٔ ده –

د وریځو سردار د دریاب سردار ته خواست وکړو چې د وچتې درجې یو سېلاب ښار ته روان کړي چې د صفايۍ سترائې اهتمام وکړي –

د دریاب سـردار یوه ورځ د زورآورو اوبو یو سـېلاب د ښــار په لور کړو بیا په ســېلاب کښـــې یواځې د خاؤرو خزلو ډهېرانونو نهٔ د ښـــار خلق هم لاړل وبهېدل –

اشاره:د بدن او روح ښار هم داسې دے چې بې غوري له حده زیاته شي نو د یو لوے سېلاب د راتلو علامه شي –

# ساده غوا

يو سړي غوا ته ووې ته څۀ ساده مخلوق يئ، بس تشه غوا يئ، کم عقله ناپوهه، خو چې کوم طرف ته دې څوک بيائي بوتلې شئ –




غوا چې دا واؤرېدل نو وئېل ئې تۀ زما ظاهر ته ګورې او دې ته نۀ ګورې چې زۀ ګياه خورم او زما د تېونو نه د نُور پشان سپين پۓ ووځی او زما په دغو پيو د انسانانو نسلونه وده مومي – په دې هغه سړے چپ شو چې غوا ئې کم تر ګڼله –

غوا ورته بيا ووېږ: دا صرف زما پورې نهٔ ده چې تهٔ ما ته د سادګۍ پېغور راکوې، هر لوے تخليق کار چې د تخليق په اعلٰی عهده فائز دے هغهٔ په ښکاره معامله کښې په سادګۍ ليدلي شي ــ

اشاره:کوم سړے چې د کائنات د ژور رازونو امين وي هغهٔ خپلو هم نفسو سره د چالاکۍ رويه نهٔ شي اختيارولے ــ

# ځنګلی چېلی

د يوې چېلۍ ښکرونه د بره نه مخې ته راتاؤېدل شروع شو او بيا دومره را اوږدۀ شو چې سم دوه غشي محسوسېدل، دا په ورو ورو لوے شوي وو نو د دې د لوئېدو احساس ورته پخپله هم نۀ وۀ شوے –




چې کله به يوې بلې چېلۍ سره مخامخ شوه نو د دې ښکرونه به د هغې مخ سره ولګېدل، او هغې به ډېر بد وګڼل – ورو ورو نورې چېلۍ د دې نه بېرته کېدلې –

يوې ملګرې چېلۍ ورته ووې ستا دا اوږدۀ شوي ښکرونه نورو چېلو سره تعلق کښې خنډ شوي دي –

هر څنګه چې وي د دې نه ځان خلاص کړه –

اخر چې معامله د حد نه ورتېره شوه نو چېلۍ د دې ښکرونو نه د ځان خلاصولو فېصله وکړه، هغۀ ځنګل کښې د بېرې اونې خوا له راغله چې د هغې دوه تنې وې او په مینځ کښې ئې لږه فاصله وه – چېلۍ خپل دواړه ښکرونه د بېرې دوؤ تنو کښې ونښلول او په زوره ئې یوه جټکه ورکړه -

یو ترق شو چې ښکرونه ئې مات په زمکه پرېوتل او چېلۍ بل طرف ته پرېوته، جټکه دومره زور کښې وه چې د بېرې اونه هم په زمکه راګزار شوه –

چېلۍ څۀ ساعت بېهوشه وه څو لحظې پس راپاڅېده د ښکرونو نه بغېر ورته ځان سپک سپک محسوس شو، اوس به ښۀ په اسانه، بې کړاوه نورو چېلو سره یو ځاے کېدله او بیا لږه موده کښې د ټولو خوښه وه –

اشارې:

| | | |
|---|---|---|
| مخې ته لوے شوي ښکرونه | : | انا، د شخصیت بې ځایه غلبه کېدل |
| د بېرې اونه | : | د دویئ تصور |
| ښکرونه ماتول | : | انا قربانول |

# کنکوک او مرغۍ

یو کنکوک د اسمان په پورته فضاګانو ګښې الوتو – دې مهال ګښې ئې یوې مرغۍ سره ملاقات وشو – کنکوک ښکلے وۀ او مرغۍ هم ښکلې وه د دواړو یو تر بله دوستي شوه –




یوه ورځ د مرغۍ هغه تار ته پام شو چې کنکوک ورسره تړلے وۀ – مرغۍ ووې دا تار د څۀ دے؟ کنکوک ووې دا هغه مزے دے چې زۀ پرې تړلے یم او په دې مزي (تار) د زمکې نه زما الوت قابو کولے شي –

په دې ازاده مرغۍ حېرانه شوه کنکوک ته ئې ووې تۀ خپل زمکني کنټرول سره ئې نو له دې کبله زما او ستا دوستي نشي کېدلې زۀ یوه ازاده مرغۍ یم –

د اسمان په فضاګانو کښې الوزم کله دلته کله هلته او تۀ خو په تار تړلے کنکوک ئې مجبوره ئې –

دې مهال کښې چا د زمکې نه تار راښکلو، کنکوک یو دم ښکته ورلړه شو، مرغۍ چې ورته وکتل نو په بره والوتله-

اشارې:

| | |
|---|---|
| په تار تړلے | : جسماني او نفسياتي خصلتونو تابع |
| د زمکې نه کنټرول کېدل | : د ښکته سطح ژوند چې د شعور او اسماني الوت کښې خنډ پېدا کوي |

# ګرم مساله

یو شاهي پخلي ګر کلي ته په چهټۍ راغے، ځان سره ئې څۀ شاهي ګرمه مساله هم راوړله – د دۀ خیال وۀ چې شاهي مسله کښې په شلګونو اجزاء ګډ دي – د دې نه به یو خاص خوندور پخلي پوښ کړم، کلي کښې به خپلوان عزیزان حېران دریان شي –




یوه ورځ ئې شاهي قورمه تیاره کړه – شاهي مساله ئې پکښې اچولې وه – وار په وار ئې قورمه خپلوانو ته وړاندې کړله –

دې ډېر خفه شو چې ځیني خلقو د شاهي مسالې خوند هډو خوښ نکړو او ځیني هسي غلي پاتي شو او ځینو خو تر دې ووې چې د دې نه خو د عام مالګې مرچکي پخکړے زیات خوندناک وي –

اصل کښې دغو خلقو کښې د شاهي ګرمې مسالې د خوند او خوشبو محسوسولو حُسن موجود نۀ وۀ –

اشاره: د لطیف څیزونو په مزاج د پوهېدو حُسن پېدا کول پکار دي ګني نو انسان به ټول عمر په دورند طبیعت تېروي -

# پیزا

یوې بنځې خپلو ماشومانو لـه پـه مینـه خـوړه تیارولـه خـو صـفائي بـه ئـې نـهٔ کولـه – لـوخي او د خـوړې ځیزونـه بـه نـاولي پراتـهٔ وو – د شپې بـه چینجـي مینجـي پـه دې شـیانو ګرځېـدل نـو دې کښـې بـه جـراثیم پېدا شو –




یـوه ورځ دغـه ښـځې د ماشـومانو د پـاره پیـزا تیارولـه – سـبزۍ او چکـن (چرګـوټي) ئـې د شـپې نـه تیـار ایښـي وو – خـو د پاڅـه ئـې پـرې سـر نـهٔ وهٔ ایښـے – د شـپې یـوه چرمخکـۍ پـه چکـن ګرځېـده پـه سبا لـه دې چکن وینځلے نهٔ وهٔ او پیزا کښې ئې استعمال کړو –

پیـزا چـې تیـاره شـوه نـو ښـهٔ ښائسـته ښـکارېدله خـو پـه اصـل کښـې زهرژنـــه وه – ماشـــومان ورتـــه لېوالـــه وو هغـــې ګرمـــه تـــاؤده پیـــزا د خوړې په مېز کېښوده –

ماشـومانو وخـوړه او دې هـم وخوړلـه – لـږ سـاعت لا تېـر نـهٔ وهٔ چـې پـــه ټولـــو اُلټـــۍ ولګېـــدې او ســـرونه پـــرې ګرځېـــدل – ګاونـــډیانو زر هسپتال ته ورسول ډاکټرانو څهٔ په ګرانه بچ کړل –

اشاره:د مور پلار د عملونو اثر یواځې په هغوي نه، د هغوي په ماشومانو هم پرېوځي

# سرچ انجن

یـو طالـب علـم پـه سـرچ انجـن د بحراوقیـانوس لټـون کـوؤ – اول ئـې "ب" ټائـپ کـړه، د "ب" پـه ټائـپ کولـو د څېړنـې اهـداف زیـات پراخـه شو او دۀ هیڅ حاصل نکړے شو –




بیـا ئـې "ح" ټائـپ کـړه، خـو هـدف ئـې ترلاسـه نکـړے شـو – "ر" ئـې ټائـپ کـړه نـو مخـې تـه ئـې څـو قسـمه "بحـر" راغلـل – دۀ بیـا دغـو کښـې د "بحراوقیانوس" پاڼه راوویسته –

دغســـې د "بحراوقیـــانوس" بـــاره کښـــې ټـــول معلومـــات د دۀ پـــه وړانـدې وو – خـو دا ټـول د بحراوقیـانوس بـاره کښـې د معلومـاتو تـر حده علم وۀ –

پرتــه لــه دې معلومــاتو اصــلي بحراوقيــانوس يــو وجــود لرلــو او د هغــه بحراوقيـانوس وسـعتونه مونـدل او تـل تـه كوزېـدل او بيـا دننـه خزانـو تـه رسېدل د يو عملي جدوجهد (هاندوهڅو) غوښتنه کوله ــ

اشاره:د نفس او روح علمونه كۀ د معلوماتو ترحده حاصل كړې شي نو انسان ته به څۀ خاص په لاس ورنشي، اصل مقصد او كاميابي دا ده چې د نفس او روح د سمندر تل ته وركوز شي نو ډېر څۀ به تر لاسه كړې شي ــ

# توری هاګۍ

یوې جرګې په پټه د سکارو (کوئلې) په بوجۍ کښې هاګۍ اچولې – د کور بندیانو دا لټون کوؤ چې دا چرګه کوم ځاے هاګۍ اچوي – څۀ وخت پس پته ولګېده چې د سکارو بوجۍ کښې یو شمېر هاګۍ پرتې دي – او چې سکارو کښې پرتې وې نو د سکارو پشان ئې رنګ هم تور شوے وۀ –




د کور مېرمن هم دغسې هاګۍ واخستې او چرګه ئې پرې کښېنوله – څو ورځې پس ورسره فکر شو چې هاګۍ خو تورې وي هسې نا د چرګې بچې هم تور راوړي –

د کور مېرمن فکرمنده وه – خو په ټاکلي وخت د هاګو نه ډېر ښکلي، رنګ په رنګ بچوړي (چرګوړي) راووتل – د کور مېرمن خوشحاله شوه – د بهر توروالي د هغو په پېدائشي حُسن څۀ فرق نۀ وۀ غورزولے –

اشاره:د حالاتو تلخي د انسان دننه جوهر، حُسن نۀ کموي بلکې دا زیاتوي –

# د زمکې سر

یــو ســړي پــه واښــو پښــه کېښــوده او وې وئېــل ســتا مقــام زمــا د پښــو لاندې دے –




واښــو (ګیــاه) جــواب ورکــړو داســې بالکــل نــهٔ ده – زمــا مقــام د زمکــې پــه ښائســته سـر بانـدې دے – سـتا دا پښـه یـو عارضـي تکلیـف دے – زر بــه تېــر شــي او تــر کــومې چــې زمــا رشــته د زمکــې ســر ســره قائمــه وي دا تکليفونه ما ته هيڅ نقصان نشي رسولې –

اشاري:

د زمکې سر : قدرت سره تعلق

پښه : دنياوي مشکلات

# سلائیډ (خوبدانـے)

هغه د چټۍ په ورځ ماشومان يو پارک ته راوستل ــ پخپله په کبل کښېناستو او ماشومان نزدي په ټالونو ځانګېدل ــ بيا ئې ناڅاپه يو خوبداني (سلائیډ) ته پام شو ــ ماشومان به د يو طرف نه وروختل او بل طرف ته به وخوئېدل بيا دغه عمل په دې طريقه بيا بيا جاري وۀ ــ



بيا ئې ځان طرفته خيال شو او سوچ ئې وکړو، بالکل څنګه چې دا ماشومان په خوبدانې خېژي راخوئيږي او کوزيږي، دغسې زۀ هم د کلونو راسې دفتر ته ځم، کور ته واپس راځم، او دا عمل پرله پسې کوم او داسې ورته ولګېده لکه چې په خپل عمر يوه اوږده موده بغېر د څۀ لوے مقصده تېرېږي ــ

بیا د هغهٔ نظر په ټالونو پرېوتو، هغه وکتل چې د "خوبداني" (سلائيډ) نه علاوه نور قسم ټالونه دي ځانګوګانې دي، په مختلفو شکلونو کښې چورلې ــ هغهٔ تهٔ احساس وشو چې د ماشومانو ټالونو ځانګوګانو کښې رنګارنګي ده خو زما ډېر عمر په يو قسم ټال ځانګلو کښې تېرېږي ــ

| |
|---|
| اشارې:<br>سلائيډ(خوبدانړے) : معمول ــ د اعلٰی مقصدونو نفي<br>په يو قسمه ټال ځانګل : د خپل توان صلاحيت نه انکار، په ښکته سطح ژوند تېرول |

# فټ بال

ځيني خلائي مخلوق په "اُړن طشتري" (الوتکه) کښې زمکې ته رانزدې شو، د زمکې نه په څۀ فاصله دوي د فټ بال يو ګراؤنډ (مېدان) وليدو چې پکښې د فټ بال مېچ کېدلو –




په ښکته راکوزېدو او تربوتر وو – د بره نه ئې د فټ بال مېچ کتلو – د دوي په سياره کښې دا قسمه څۀ لوبه نۀ وه – نو دوي ګڼل چې ګني ځيني خلق د غونډمونډ څيز د پاره په جنګ دي – بيا ناڅاپه بال ګول ځاے کښې لاړو نو دوي پوهه شو چې شايد اوس به جنګ ختم شي –




ولې غونډ پنډوس بيا مېدان ته راوړلے شو او دا لوبه بيا شروع شوه –

دوي الوتکه (اُړن طشتري) زمکې ته رانزدې کړه او يو لوبغاړے ئې ځان سره اوچت کړو – او الوتکه ئې فضا کښې بره بوتله – د دې لوبغاړي تپوس مقصد دا وۀ چې په دې ټول کشمکش ځان پوهه کړي –

دوي د لوبغاړي نه پوښتنه وکړه چې تاسو ټول په دې پنډوس (بال) جګړه ولې کوئ او د دې نه ستاسو مقصد څۀ دے؟

لوبغاړي ورته ووې زمونږ مقصد صرف دا دے چې پنډوس د ګول کولو ځاے ته بوځو – د دې نه پس بال بيا سنټر ته راوړلي شي او لوبه بيا شروع کړې شي – تر دې چې د لوبې وخت ختم شي او وخت چې ختم شي نو لوبه هم ختم وګڼلي شي – بيا کۀ بال مېدان کښې هر چرته وي –

په دې دغه خلائي مخلوق زيات حېران شو – د دوي د پاره دا د حېرانۍ خبره وه – چې دا خلق په يو فضول مشق کښې اخته شوي دي –

اشارې:

| | | |
|---|---|---|
| د فټ بال ګراؤنډ | : | دنيا |
| لوبغاړي | : | انسان |
| د فټ بال لوبه کول | : | د دنيا مال و دولت د پاره فضول لاس پښې وهل |
| ګول کول | : | بې مقصده ژوند |




# ځنګلی غوا

د یو کسان غوا د چراګاه نه ماښام کور ته رانغله – غوا په څرېدو څرېدو لرې ځنګل ته لاړه او د کور لار ترې هېره شوې وه – په بل سحر ئې یوې ځنګلي غوا سره ملاقات وشو –

ځنګلي غوا ورته وکتل چې دا خو ډېره ویرېدلې ده – نو د کورنۍ غوا نه ئې تپوس وکړو چې ته ولې دومره ویرېدلې ئې – دې ووئېل د کور لار رانه خطا شوې ده – او مالک به په انتظار وي– ځنګلي غوا حېرانه شوه، وئېل ئې څنګه مالک! زمونږ د ځنګلي غواګانو خو نۀ خور کور وي او نۀ مالک




– چرتي چې مو زړۀ غواړي ښۀ په ازادۍ ګرځو – بیا د ځنګلي غوا نظر د هغې په غاړه کښې په تړلي رسۍ پرېوتو – وئېل ئې دا څۀ دي؟ کورنۍ غوا ووې زما مالک په دې رسۍ ما موګي سره وتړي – ځنګلي غوا ورته

ووېڅ چې ستا مالک دومره ظالم دے – نو بيا هغهٔ له ورتلو ته داسې بې قراره ولې ئې ؟

کورنۍ غوا ووېڅ هغهٔ ما له بوتاوه راکوي، زما پۍ لوشي، ځنګلي غوا ووېڅ د ګياه او بوتاوې نه خو ټول ځنګل ډک دے، نو بيا تهٔ د هغهٔ بوتاوې ته څهٔ له پسخېږے او هغهٔ ستا پۍ ولې لوشي دا خو ستا د څخي حق دے –

کورنۍ غوا جواب ورکړو هغهٔ زما څخے جُدا تړلي وي چې هغهٔ پۍ وۀ نهٔ څښي او دا پۍ هغهٔ پخپلو بچو څښوي –

ځنګلي غوا په دې سخته حېرانه شوه – هغهٔ لږ ساعت غلې خاموشه وه – کورنۍ غوا ورته بيا ووېڅ – تهٔ ما ته د ځنګل نه د وتو لاره ښودلې شې؟ چې زهٔ خپل مالک ته لاړه شم؟ ځنګلي غوا دا ځل په غصه کښې ووېڅ ستا په شان د غلامانه ذهنيت غوا چې په ظلم زغملو چپ ده او ظالم ته دوام ورکوي زهٔ ئې نور ليدل نشم زغملې – دا ئې ووېڅ او ځنګلي غوا له هغه ځايه لاړه –

اشاره:د پوخ غلامانه ذهنيت سړے چې د ازادۍ د شعور نه بې خبره وي هغهٔ غلامۍ ته ژوند وائي –

# اے تي ايم ATM

يو سړے د اے تي ايم کوټې ته ورننوتو، ورسره وړه لُور هم وه – د هغې شوق وۀ چې وګوري د اے تي ايم نه پيسې څنګه راووځي – هغۀ کارډ داخل کړو – "پاس ورډ" ئې ورکړو او زر د مشين نه پيسې راووتې –




ماشومې چې دا وکتل نو پلار ته ئې ووې تۀ هسې ما د لوبتلو اخستو نه منع کوې، ستا د پاره څۀ ګرانه ده کله چې غواړې د اے تي ايم نه چې دې څومره خوښه وي پيسې ايستې شې –

د ماشومې ذهن لا وړوکے وۀ، دا ورته معلومه نۀ وه چې بنده د څومره مرحلو نه تېر شي بيا چرته د خپلې حصې رقم د اے تي ام نه اېستلے شي –

اشاره:د ژوند څومره وسيلې چې د انسان حصه کښې راځي د دې د پاره هغۀ د څو مرحلو نه تېرېږي خو د انسان کوتاه نظري ځيني وخت هغۀ ناليدلي لاسونه نۀ ويني –

# د توری اور کرېلی ځېله

یـو پټـي کښـي د تـوری او کرېلـي ځېلـی ځنـګ پـه ځنـګ لوئېـدلي ــ د دوي نـوي نـوې ځـانګې او پـاڼې خپلـو کښـې يـو بـل سـره ګډې وې لکـه چـې د دواړو ځېلـی يـو بـل تـه غـاړې ورکـړې، پرمختـګ کـوي ، لـږه مـوده پـس د دواړو ځېلـی ځـواني شـوې او د مېـوې نيولـو وخـت پـرې




راغـے ــ

د کرېلـې پـه ځېلـی کرېلـې او د تـوری پـه ځېلـی تـوری راووختــې، تـوری وليـدل چـې د دې همځـولي کرېلـې ترخـې دي نـو د وړوکـوالي تاؤده مينه او دوستي سرِه شوله ــ

څـو ورځـې پـس د مـزاج د اخـتلاف تـر مخـه توريـو اور کرېليـو کښـې بېلتون پيدا شو ــ

اشاره:دا هم يو حقيقت دے چې خلق پخپلو وراثتي صفاتو لوئيږي، د صفاتو او مزاج دا فرق وخت تېرېدو سره نور په ډاګه شي ــ

# غار

دورستان کلے د یو نېغ اوچت غر په لمن کښې دے – کلي کښې چې ولاړ ئې او د غر د پاڅه ګورې نو ښت به نېغ اسمان طرفته اوچت کړے نو هله به چرته د غر څُوکه په نظر راشي –

کلي کښې مشهوره وه چې د دورستان د دې غر په څوکه یو غار دے دې کښې د الله یو ولي وسېږي – خلقو وخت په وخت د غر په څوکه غار ته د رسېدو هڅه کړې وه – چې د الله د ولي دیدار




وکړي خو د دغه ډېر ګران منزل تر سره کولو هڅه به شنډه شوه– اوس دا شوق د دورستان د یو زلموټي بېدار خان په سر کښې غزوني وکړه دهٔ د ټولو مخالفتونو باوجود د غر په څُوکه ختلو – د غار لیدلو او د الله ولي سره د ملاقات کولو کلکه اراده وکړه –




يوه ورځ سحر وختي د منزل په لور روان شۀ لاره کړکېچنه وه – تنهائي او وحشت د قسماقسم کړاؤنو تکليفونو سبب جوړېدۀ – خو د دۀ د شوق په وړاندې دا هر څۀ لکه د دۀ د پاره اسان وو –

دا د څو ورځو شپو سفر وۀ – دې به ستړے شۀ – وغورزېدو – زخمي به شۀ – خو بيا به هم روان وو – د طوفانونو مقابله ئې وکړه – په غرئيزه لاره کښې ئې څو شپې تېرې کړلې خو د دۀ په اراده کښې پوتړے خلل رانغے – د څو ورځو سخت سفر نه پس غر کښې په دومره لوړه ورسېده چې غار ورته په نظر راغے – هيله ئې پيدا شوه چې ورځ نيمه کښې به د غار په خلۀ کښې ولاړ وي او بيا به د الله ولي سره د ملاقات کولو پخوانے ارمان وربېژبېږي –

څهره ئې په دوړو لړلې وه – جامې ئې ځاے په ځاے شلېدلې وې – پښې لاسونه په ازغو او کاڼو لګېدلې ژوبل شوي وو – د سر وېښتۀ ئې جاخه شوي وو، ږيره او بربېت ئې بې ډوله لوے شوي وو – خو د دې هر څۀ باوجود د دۀ زړۀ روښانه وۀ – او د غار خلې ته د رسېدو او د الله ولي سره د لېدو شوق لکه د مشال بلېدو دي پرله پسې د غار په لوري روان وۀ – زړۀ ئې درزېدلو –




ستركي ئې روښانه وې – غار ته ښهٔ ورنـزدې شو – زړهٔ ئې په زوره ودرزېدو د لږ ساعت د پاره ئې د ستركو مخې ته تياره شوه او د لېوالتيا په شوق كښې ترې هېر شو چې آيا دا هغه غار دے د كوم په لوري چې دې روان دے – يا د دهٔ د زړهٔ دننه غار دے، ناڅاپه وخوئېدو – ښكته لړه شو، لوې اونې سره ئې ډغره ووهله په غر يو ځاے ودرېدو – ناڅاپه لړه كېدو او جټكې خوړلو سره د دهٔ دننه يوه رڼا پېدا شوه – خپل ځان ئې راټول كړو نو دهٔ ته محسوس شوه هغه غار چې دهٔ د غر په څوكه لټوؤ پخپله د دهٔ زړهٔ كښې وهٔ، دهٔ ښهٔ په مينه خپل زړهٔ كښې د موجود غار او د الله د ولي نظاره وكړه –

دې سر تر پا نُور وهٔ ، دې رڼا سره واپس د كلي په سفر بېرته روان شو، هلته خلق دهٔ ته ستركې په لار وو –

اشاره:د رڼاګانو تلاش كوونكي لاروے آخر يوه ورځ هغهٔ رڼاګانې خپل وجود كښې دننه بيا ومومي –

# ډش انټینا

یو زلمي ډش انټینا واخسته ــ د کور د چت د پاڅه ئې ولګوله چې پخپل ټېلي وژن زیات شمېر سېټلائټ چېنلې وکتلې شي ــ د شپې به ئې ریموټ په لاس کښې نیولے د ټي وي مخې ته کښېناستو او چېنلې به ئې وروستو مخکښې




کولې په سوونو چېنلې به وې او پرله پسې به ئې بدلولې ــ هغه به یو چېنل ته توجهٔ نهٔ کوله ــ اکثر به ئې هم دغسې چېنلې بدلولې رابدلولې ــ خوب به ورغے او اودهٔ به شو ــ د هغهٔ په طبیعت کښې په یو ځائے د ودرېدو کمے وهٔ ، نو کهٔ سېټلائټ چېنلې هر څومره په ګڼ شمېر کښې وې، دهٔ ته ئې څهٔ فائده نهٔ شوه ورکولې ــ

اشاره:د علمونو او د معارفو په تر لاسه کولو کښې د پام ګرځولو قوت (پخه او کلکه توجهٔ) یو اهم کردار دے

# عمارت

يو معمار ډېر مضبوط عمارت تعمير کړو – ښهٔ زيات سيخ او سيمنټ ئې پکښې استعمال کړل–




د عمارت بنيادونه، دېوالونه، بيمان او چتونه د کنکريټ (کاڼو) نه جوړ کړې شو– عمارت چې پوره تيار شو نو يو سړي دا کور په بېعه واخستو او خپلې ښځې او بچو سره پکښې وسېدلو– عمارت کښې مېشتهٔ وو – خوړل څښل ئې، خندا خوشحالي وه او د هر قسم نعمتونو مزې خوندونه ئې اخستل –

يوه ورځ د عمارت يو دېوال، د خپل سر د پاڅه بيم ته ووې چې بيم بي بې!

مونږ ستاسو او د چتونو وزن پخپل سر اوچت کړے کلک ولاړ يُو خو وګورئ د دې کور خلق څومره مست دي او دا فکر هم ورسره نشته چې د دې عمارت جوړونکے او وزن وچتونکے هم څوک شته دے –

اشاره:انسان چې دنيا کښې وسيږي نو د کائنات د نظام باره کښې ورله فکر هم پکار دے او د کائنات د خالق (جوړونکي) شکرګزار وسېدل پکار دي چې دا وېړ کائنات ئې د وسېدو د پاره ورکړے دے –

# فاسټ فوډ (تیار پخلے)

یــو ښــار کښــې د فاسـټ فـوډ (تیـارپخلي) دکـان وۀ ـــ دکـان پـه سـرو زیـړو رنګونـو ښائسـته کـړے شـوے وۀ ـــ د کټونکـو اشـتها بـه ئـې زیاتولــه ـــ پــه خصوصــي توګــه زلمــو بــه فاســټ فــوډ کښــې زیاتــه دلچسـپي اخسـته ـــ ډلـې ډلـې بـه راتلـل او د فاسـټ فـوډ مـزې بـه ئـې اخستې ـــ




د ښـار ځینـو خلقـو چـې طبیبـان هـم پکښـې شـامل وو، پـه فاسـټ فـوډ اعتراضـونه کـول ـــ د دوي پـه خیـال فاسـټ فـوډ کښـې کـۀ هـر څـومره رنګینـي او زړۀ راښـکون وۀ بیـا هـم دا خـوراک د صـحت د پـاره فائـده مـن نـۀ وۀ ـــ ناقـدینو پـه دې خبـره ټینګـار کـوۀ چـې د دې خـوراک پـه خوړلو به زلمے نسل د رنځونو جالې شي ـــ

د ښـــار خلـق دوه ډلـو کښـې تقسـیم شـو یـوه ډلـه هغـه وه چـې د خـوږې رنګیني او زړۀ راښکون ئې اصل ګڼلو او د دغو اسیران شو –

او دوېمـــه ډلــه پوهېــدونکي خلــق وو هغــوي پــرې ســوچ کــوۀ د دي رنګینۍ او زړۀ راښکون په شا د رنځونو تل ته ورسېدل–

اشاره:ظاهري رنګیني او کشش ضروري نۀ ده چې په معیاري اصولو هم پوره وي– د حقیقت لټون د دې خبري غوښتنه کوي چې د ظاهري پړق پړوق نه اخوا د معاملې تحقیق وکړے شي –

# پرنده او کارنده

اسلم زر پاڅېدو او د لامبلو د پاره غسل خانې ته لاړ – په منډه ئې جامې واغوستې – مېرمن ناشته (سحرنارې) تیاروله – هغهٔ په تادئ د برېډ یو توس خلې ته کړو د چاېو پیاله ئې لاس کښې ونیوله یو څو ګوټه ئې وخښلې او بهر ته وځغلېدو – مېرمن ورپسې اواز وکړو ناشته خو به دې سمه کړې وه کنه! هغهٔ ووې وخت نشته، ګاډے به ووځي –

دغسې په منډه منډه دفتر ته ورسېدو – دفتر کښې یوه د بلې نه زیاته لانجه مخې ته پرته وه – د ټولو نه زیاته د بالا افسرانو




رویه، د دهٔ بالکل نهٔ وه خوښه – ټوله ورځ ئې دفتر کښې کار کوؤ –

کور ته چې واپس راتلو نو ماښام به شو – کور ته چې راغے نو ډوډئ به ئې وخوړه او بیا د اودهٔ کېدو وخت شو د اودهٔ کېدو نه وړاندې ئې سوچ وکړو چې دا د معمول ژوند خو ما خوري –

بـل سـحر چـې پاڅېـدو نـو تـازه دم نـۀ وۀ – د شـپې خـوب ئـې کـړے وۀ بيـا هـم سـتړيا نـۀ وه تلـې – هغـۀ غـولي (انګـڼ) تـه راغــے – موسـم صـفا وۀ – بيګـاه بـاران شـوے وۀ – هغـۀ وليـدل يـو ښائسـته مرغـۍ راوالوته د امردو په اونه کښېناسته –

لږ ساعت پس هغۀ بيا والوته او د ګلونو کيارۍ ته راغله بيا د ګلونو کيارۍ سره اوبو کښې ورغوپه شوه وزرې ئې وڅنډلې او بيا لاړه د اونې په څانګه کښېناسته –

د مرغۍ په دې حرکت اسلم ډېر سکون او قلارے محسوس کړو – د مرغۍ خوا له ورغـے – او ورته ئې ووې تۀ ډېره په ارام ښکارے – ما ستا په کار کښې څۀ تادي او ويره محسوس نۀ کړه– مرغۍ ووې تادي او ويره د څۀ؟ اسلم ووې زۀ هره ورځ ډېر ناوزګاره يم او دې ناوزګارتيا کښې د سحر نه ماښام شي – زۀ حېران يم تۀ يوه وړه شان مرغۍ څومره ازاده ئې او زۀ دفتري کارنده دومره په کار کښې بوخت –

مرغۍ ووې ستاسو انسانانو نه ضرور څۀ غلطي شوې ده – مونږ مرغۍ چې تاسوه ته دې حال کښې ګورو نو افسوس کوۀ، خو تاسو د دې جنجال نه نۀ شو ايستې –

اشاره:سپک ساده ژوند، غوره ژوند دے –

# د بادشاه باغ او غوا

یـوه غـوا د چرتــه نــه تښـتېدلې پــه منـډه راغلـه، شـاهي بــاغ تــه ننوتــه، د ګلونــو پټــي تــه ورغلــه او رنــګ پــه رنــګ ګلونــه ئــې د پښــو لانــدې وچقول ــ




او کــوم بــوټي بــه چــې مخــې لــه ورتلــل د هغــو پــاڼې ئــې وشــوکولې او خــوړلې ــ د شـنو وښـو چمنونـو کښــې ئــې منـډې ووهلــې او د وښـو ګيـاه شــينکي مېــدانونو حُســن ئــې د پښــو لانــدې تــالا ترغــه کــړل ــ د اوبــو فـوارو تــه ورغلــه د اوبـو پــه تــالاونو کښــې تېـره شـوه او د ځینـو فـوارو خلې ئې ماتې کړې ــ

د بـاغ څوکيـدار پـه غـوا پسـې ورمنـډه کـړه چـې شـاهي بـاغ د دې د نقصـان نـه بـچ کـړې شـي – غـوا ئـې راونيولـه – بـاغ تـه ډېـر نقصـان رسېدلے وۀ – او بادشاه په دې ټوله معامله ډېر غصه وۀ –

اشاره:وجود، روح او زمکه د بادشاه باغ دے – دې باغ کښې به پوره په سړيتوب (تهذيب) وسېږے، کۀ د قوانينو خيال وۀ نۀ ساتلي شي نو زر ده چې بادشاه د خپلو دربانانو په ذريعه تاسو په دې باغ کښې د ګرځېدو نه منع کړي –

# دينو او د هغهٔ خر

په يو کلي کښې دينو نومي يو سړے وسېدو – هغهٔ سره يو خر وهٔ – چې دهٔ به ئې ډېر خيال ساتلو – بيا يوه ورځ خر بيمار شو – خر سره د دينو ډېره مينه وه – د خر په ناروغۍ دينو زيات پرېشانه وهٔ –




دينو خپلې ښځې ته ووې زهٔ پوره کوشش کوم چې د دې پرېشانۍ نه ځان بچ کړم خو ذهن مې ګډوډ دے، دا نهٔ شم قابو کولے – ښځې ورته ووې دا کار ډېر محنت غواړي –

دينو ګڼله چې د دوي دريې دي – خر، د دينو ذهن او دينو پخپله چې د ذهن نه جُدا هم وهٔ او مقابله کښې ئې ولاړ هم وهٔ –

بیا یوه ورځ خر مړ شو – خر مړ کېدو سره، د خر په طرف ګډوډ کېدونکي ذهن هم مړ شو، اوس دینو یواځې پاتې شو، خو د خر مینې او د خر ناروغۍ کښې د پرېشانه کېدو اثرات د هغهٔ ذات سره پاتي شو –

| | | |
|---|---|---|
| اشارې: | | |
| خر | : | انساني جسم |
| ذهن | : | د جسماني ژوند شعور |
| دینو | : | روحاني شعور |

# د کارغهٔ او چنچړۍ هاګۍ

د یو ځنګل بادشاه حکم وکړو چې ټولې مرغۍ دې د خپل خپل توان صلاحیت مطابق د خوراک څهٔ سامان شاهي خزانه کښې جمع کړي – چې سخت وخت کښې به ئې بادشاه په حقدارو مرغیو تقسیموي –




په ټاکلي ورځ بادشاه دربار ولګولو او وزیران ئې په خپل خپل مقام کښېناستل – یوه یوه مرغۍ به راتله او د خپلې حصې سامان به ئې جمع کوؤ – چا سره به د ډوډۍ ټُکړه وه چا سره به دانې وې – او چا به بل څهٔ څیز خلهٔ کښې نیولے راوړو –

دې ځنګــل کښـــې يــو کارغــهٔ هــم وهٔ ـــ هغــهٔ چـــې د بادشـــاه اعــلان واؤرېـدو نـو پـه يـوه اونـه کښـې ئـې د چنچـړې جالـه خـالي وليـده، هغـې تـه ننوتلـو، د چنچـړې هـاګۍ ئـې پټـې کړلـې او هغـهٔ ئـې بادشـاه تـه پـېش کړلې ـــ

وزيـر بادشـاه تـه ووې چـې کارغـهٔ د چنچـړې هـاګۍ جمـع کـړي دي ـــ بادشـاه وزيـر تـه پـه غـوږ کښـې څـهٔ ووې ، وزيـر دربـار تـه راغـــے، کارغـهٔ تـه ئـې ووې ـــ بادشـاه سـلامت تـا تـه ماښـام بيـا د پـېش کېـدو حکم کړے دے ـــ

ماښـام چـې کارغـهٔ بيـا دربـار تـه ورسـېدو نـو شـاهين چـا تـه چـې بادشـاه د وړانـدې نـه حکـم کـړے وهٔ، پـه يـو وار کښـې د کارغـهٔ سـر وزورلـو ـــ اصــل کښـــې د مارغــانو بادشـــاه د خــوراک د ســامان جمــع کولــو دا استحصـالي رويـه خوښـه نـهٔ کـړه او کارغـهٔ تـه ئـې د دې سـختې سـزا ورکولو فيصله کړې وه ـــ

اشاره:صدقې او زکٰوت د هغه مال نه ورکول پکار دي چې په حلال طريقه ګټلے وي ـــ چې مال حلال وي نو زکٰوت خېرات هله فائده من وي ـــ ګني نو هيڅ ښېګړه به ئي نهٔ وي ـــ

# د بوډۍ جونګړه

يــو مســافر ځنګــل کښــې روان وۀ، لاره تــرې خطــا شــوه ــ د لارې لټـون ئـې کـوۀ ، شـپه پـرې راغلـه ــ ناڅاپـه ئـې لـرې رڼـا وليـده ــ د رڼـا پـه لـورې تلـو چـې يـوې جـونګړې تـه ورسـېدو چې بهر يوه ډيوه بلېده ــ




دا جـونګړه د يـوې بـوډۍ وه ــ چـې يـواځې پـه دې ځنګـل کښـې وسـېدله ــ دې ويرانـه ځنګـل کښـې د بـوډۍ جـونګړه د مسـافر د پـاره د ژونـد پېغـام ثابـت شـو ــ بـوډۍ پـرې اوبـۀ وڅښـولې، د خـوړې د پـاره ئـې څـۀ اوچـه ميـوه وړانـدې کـړه او د شـپې تېرولو د پاره ئې ځاے ورکړو ــ




سحر چې مسافر د بوډۍ نه رخصتېدو نو ورته ئې ووې – ته څومره نېکه ئې چې په ځنګل کښې ورک شويو ته لاره ښائې ارمان چې زۀ هم په ځنګل کښې وسېدلے او دا کار مې کولې –

بوډۍ ورته ووې د لارې ښولو دا کار ته په ښار کښې هم کولے شې – ما بوډۍ سره خو په دې ويران ځنګل کښې څۀ په ګرانه دا يوه جونګړه ده او ډېرې کمې وسيلې راسره دي – تاسو سره ښارونو کښې هم داسې تور تم دے – خلق پرله پسې بې لارې کيږي او ورکېږي – تاسو سره غوره وسيلې دي او بې لارو شويو خلقو ته په تورو شپو کښې ځائے ورکولے شئ –

خلقو ته په تورو شپو کښې ځائے ورکول او سبا له په نېغه لار روانول، ځنګل کښې چرته خال خال داسې وشي خو په ښارونو کښې د دې زيات ضرورت دے –

اشاره:انساني ژوند په تيارو کښې ډوب دے، دې کښې داسې پټې مسئلې پېژندل او د دې هوارول لويه نېکي ده – د نېکۍ تعلق څۀ خاص حالاتو سره نۀ وي –




# حاصل پور

چا معمــار يــو نــوي ښــار ابــاد کــړو اول ئــې يــوه لويــه رقبــه واخســته ــ دا کنـدې کپـرې وه ــ اول ئــې هــواره کــړه ــ رقبــه ئــې پــه مختلفــو بلاکونــو کښــې تقســيم کـــړه ــ څـــۀ بلاکونـــه د اوســـنو تعميراتـــو د پـــاره ســـتعمال کړے شوي وو او څۀ د راتلونکي وخت د تعميراتو د پاره وو ــ




د ښـار نـه ګېـر چـاپېره ئـې يـو دېـوال جـوړ کـړو او د ننوتـو د پـاره ئـې يـوه لويـه مرکـزي دروازه جـوړه کـړه ــ د امنيتــي (ســيکيورټي) عملــې د پــاره ئــې نګــران څــوکۍ جــوړه کــړه ــ د اســتوګنې کورونــو ســره ســره څۀ پلاټونه ئې د تجارتي کاروباري سرګرمو د پاره خاص کړل ــ




د سړکونو داسې جال ئې خور کړو چې سړک به هر کور سره تړلی وي. کمرشل ایریا (تجارتي علاقه) ته به رسېدو او د هغو سړکونو جال به د ښار مرکزي دروازې ته رسېدل. دۀ په ښار کښې د اوبو رسد او د نکاسۍ پوره نظام وټاکلو له دې کبله به ښار هر وخت صفا سُتره وۀ.

ښار کښې د لوبو مېدانونه هم وو او د رنځورو خلقو د پاره یو هسپتال هم قائم کړے شو. د ښار دننه د سېل د پاره پارکونه هم جوړ کړے شو. د کورونو مخې ته او د سړکونو په غاړه شنې شنې اونې وکرلې شوې.

پرته له دې عبادت خانې جوړې کړې شوې. سکولونه کالجونه جوړ کړے شو چې د ښار د وسېدونکو د پاره د روحاني او اعلٰی تربیت اهتمام وکړے شي. عمارت جوړونکي د دې عظیم ښار نوم حاصل پور کېښود.

اشاره:انساني ژوند د دې خبرې غوښتنه کوي چې انسان د خپل ذات دننه پوره ښار جوړ کړي چې پکښې د انساني ذات د ترقۍ کولو ګټورې وسیلې موجود وي.




# جنریټر

د یو سړي په کور کښې تیاره وه – اخر دهٔ یو جنرېټر واخستو چې په پټرولو به چلېدو – جنرېټر کښې چې تېل واچولي شو نو دې به چلېدو بجلي ئې پېدا کوله ، کور روښانه شو –

جنرېټر د دهات (اوسپنې وغېره) نه جوړ یو مشین دے – پټرول بهېدونکي څیز دے – او رڼا چې یو لطیف نُور دے په ښکاره دریو واړو کښې څهٔ مماثلت نشته –

بیا هم رڼا د جنرېټر نه ځان له وجود قائم ساتلے وهٔ – دغه سړي یوه بیټري هم واخسته اوس به هغهٔ بجلي ځان له جُدا کړه بل ځاے




ته به ئې بیټرئ کښې بجلي ورسوله او نور څیزونه ئې هم روښانه کولي شو –

اشاره:انساني جسم یو داسې مشین دے چې دې سره ترقي کوونکي شعور کهٔ د مشین نه جُدا شي نو هم خپل وجود لري –

# چټخنی

یو سړي د کمرې دننه دروازه بنده کړې وه چټخنۍ ئې لګولې وه اودۀ وۀ – د هغۀ دوستانو یارانو ډېر وخته پورې دروازه ټکوله خو هغۀ دومره په ډوب خوب اودۀ وۀ چې دروازه ئې لرې نۀ کړه –




دوستانو کوشش وکړو چې په زور دروازه پرانزي او دې بېدار کړي خو داسې ممکن نۀ وه – ځکه چې هغۀ دروازې ته دننه چټخني لګولې وه – یاران دوستان چې ستړي شو نو واپس لاړل او هغه سړے دننه اودۀ پاتے شو -

اشاره:ځیني خلق غواړي چې نوي علمونو او افکارو سره اشنا شي خو داسې ځکه نۀ شي کېدلې چې دوي خپله د ذهني او روحاني صلاحیت خانه د دننه څخه بنده کړې وي – کۀ چرې دوي دا روش خپل دننه بدل نۀ کړي نو بل څوک به د هغۀ مدد ونکړې شي –

# لولکۍ او کارغۀ

يو کارغۀ د چرته نه را والوتو – باغ کښې راکوز شو – باغ کښې ئې يوه ښائسته لولکۍ وليده – د لولکۍ خوشنما، نازک او رنګين وزرونه د کارغۀ خوښ نۀ شو –

هغۀ لولکۍ ته ووې دا ټول څۀ فضول نمائش دے – لولکۍ کارغۀ ته ووې زما دا حُسن، نزاکت او رنګينې زما د دننه ذوق، بهرنې اظهار دے – چې ستا په شان کم نظره ئې نۀ وينې – دې سره لولکۍ والوته او د ګلونو پټې کښې د يو خوش رنګه ګل د پاڅه کښېناسته –

کارغۀ بيا طنز وکړو تۀ په ګلونو کښې څۀ ګورے ؟ لولکۍ ووې، دا ګلونه زما د ذوق د تسکين سامان کوي او مونږ خپلو کښې د حُسن، نزاکت او رنګينو د قيصې تکميل کوؤ – او دا ستاسو کارغانو د شعور نه بالا څيز دے –

کارغۀ ووې دا څۀ بېکاره مشغله ده، ما ته وګوره چرته چې مې زړۀ غواړي، الوزم کله هغه کور کله دا کور کۀ څۀ شې پروت وي نو ښۀ په ښۀ کنې اوچت ئې کړم او وې خورم – بياپه مخه ځم الوزم –

لولکۍ ووې ستا دا کار روزګار داسې دے چې ستا په فطرت کښې ئې بدذوقي پيدا کړې ده – تۀ کارغۀ ئې، ستا ګلونو، لولکو او د ګلشنونو، رنګونو، ښائستونو او د رازونياز خبرو سره څۀ تړون؟؟

| | | |
|---|---|---|
| اشارې: | | |
| لولکۍ | : | لطيف احساسات، سپېڅلے ذوق |
| ګل | : | سپېڅلے ذوق او د شعور په ترلاسه کولو کښې مرسته کونکي |
| ګلشن | : | د روحاني خوشحاليو دنيا |
| کارغۀ | : | بې ذوقي، د لطيف حواسو نيشتوالے |

# بوتے او پیوند

یو سړی د بوزغلی خاني څخه ګلدار بوټے کور ته راوړلو ــ د بوزغلی خانې مالک ورته ووي دا اونه اصلی حالت کښې ځنګلی قسمه مېوې ورکوی ــ خو د دې یوه څانګه ښهٔ قسمه مېوې سره پیوند کړې شوې ده ــ




هغه څانګه ئې ورته وښودله او وې وئېل د دې څانګې به ښهٔ پوره خصمانه کوې ــ او د زوړ نسل څانګې به وخت په وخت پرېکوې ــ دغسې به چې دا بوټے لوے شی نو ښهٔ قسمه مېوې به درکوی ــ

هغهٔ سړی دا بوټے په کور کښې نال کړو او پوره خصمانه به ئې کوله ــ ګوډ به ئې کوؤ ــ اوبهٔ به ئې ورکولې ــ

او د موسم مطابق څرۀ به ئې ورکوله – خو د بوزغلی خاني د مالک هغه وېنا ئې هېره کړه چې ځنګلی ښانګي به پرېکوې – چې نوی پېوند شوی بوټے تاند او ښېرازه شی –

بوټے لوے شو یو کال پرې ښې زیاتې مېوې راوټوکېدې خو دا څۀ وشو؟ دا خو ځنګلی مېوې دی؟ نۀ ئې رنګ ښکلے، نۀ ئې خوند ښکلے، زیات پرېشانه شو چې دومره کالونه مې برباد کړل – د خپلې خواری محنت مېوه په لاس رانغله – اوس وخت تېر وۀ او د لاس مروړلو نه څۀ نۀ جوړېدل –

اشاره:دنیا کښې د انسانی ژوند د ودې کولو یوه موقع وی – دا وخت د ارتقاء د سلسلې یوه کړی ثابتېدے شی – دې کښې خپله انفرادی حصه لټول ناممکن دی –

# ایراړه (آواره) شادو

یـوه شــاده د ځنګـل نــه ووتــه ــ نـزدې ښــاریه کښــې بــه ایـراړه ګرځېـده او ورانــی بــه ئــې کــول ــ کلــه بــه ئــې د چــا لاروی نــه څــۀ څیــز راوشوکولو کله به ئې د دکان نه څۀ شے راوتښتولو ــ




د شــادوګانو د قبیلــې ســردار پــه دې خبـره ډېـر ځلــه شــادو تــه غصــه وکـړه ــ وې رټلـه چـې دسـې مـۀ کـوه ــ دا عـادت پرېـږده ــ ځنګـل تـه راشـه خپلـو خلقـو سـره یـو ځـاے اوسـه ــ او پـه هغـه خـوراک ګـزاره کوه چې نور ټول ئې په دې ځنګل کښې خوري ــ

پـه ایـراړه (آواره ) شــادو د سـردار خبـره ښــۀ وۀ نـۀ لګېـده ــ هغـۀ بـه دغسې نزدې ښاریه کښې ګرځېده او ورانی به ئې کول ــ




دا د دي د پــاره يـوه عــام خبـره وه او پــه دې ئــې معمـولى بــاور هـم نــۀ وچې گنى د دې د ورانو کارونو په انسانى ژوند څۀ اثر پرېوځي –

يــوه ورځ شـــادو د يـــو دکـــان نـــه څـــۀ کېلـــې وچتـــې کړلـــې – دکانـــدار وريـــسې منـــډه کرلـــه – شـــادو پـــه منـــډه زغلېـــده – ســـړک تـــه راغلـــه – ناڅاپـه د بلــې غــاړې نـه راتلـونکي گــاډو هنگـامي برېکونــه ووهـل شـور غوغــا جــوړه شــوه دوه گـــاډي خپلـــو کښـــې وجنگېـــدل – او گـــن خلـــق ژوبل شو –

يــوې شـــادو خپـــل ســـردار تـــه دا ټولـــه واقعـــه بيـــان کـــړه – ســـردار شـــادو راوغوښـتله – ښــۀ ئــې ورټلــه چــې گــوره ســتا پــه وجــه څــومره نقصــان وشــو گــڼ بــې گنــاه خلـق ژوبـل شــو – شــادو، معصــوم صــورت نيـولــې، د سردار په مخکښې ولاړه وه لکه چې دې هډو څۀ کړې نۀ وي –

اشاره:انسان چې د اصول او قاعدې قانون خلاف کار کوي نو معاشره کښې شر فساد او اړې گړې پېدا کوي – په داسې حال کښې ځان لل بوله او معصوم ښکاره کول څۀ معنې نۀ لري –




# غوزان (اکوړ)

د بادشــاه  پــه وړانــدې ټــرۍ کښــې غــوزان (اکــوړ) پراتــهٔ وو – یــو غــوز ئــې راوچــت کــړو، پــه مېــز ئــې کېښــود، لــوخي کښــې پرتــو نــورو غوزانو دا منظر کتلو –




پــه مېــز راغلــي غــوز لــږ ویرېــدو او دا ئــې ګڼــل چــې بادشــاه بــه اوس پــه ڼتکــي د دهٔ بهــرنــے خــول مــات کــړي – د غــوز پخپلــه هــم دا خــواهش وهٔ – چــې د دهٔ بهــرنــے خــول مــات کــړے شــي او دننــه مغــز (چکــۍ) بهــر راووځــي - غــوز د دې ورځــې د پــاره ډېــر انتظــار کــړے وهٔ– خو بیا هم ویرېدلو –

بادشــاه پــه یــو لاس ســهارا ورکــړه – د بادشــاه پــه لمــس غــوز (اکــوړ) سرور حاصل کړو –




خوشـحاله شـو ، تـن بـدن کښـې ئـې د نُـور چپـې خـورې شـوې – دې مهال کښې بادشاه بل لاس کښې په نیولی ښتکي یو ګزار ورکړو –

بهـرنـے پوسـتکـے مـات شـو او دا غـوز دننـه مغـز (چکـۍ) سـره راڅوندے شو – غوز نن خپل معراج ته رسېدلے وۀ –

| |
|---|
| اشاره:د انسان معراج د زړۀ او روح ژوند دے – چې د غوښې او څرمنې جوړ جسم نه علاوه يو څيز دے– کۀ طلب شديد وي نو هغه ورځ راشي چې د بادشاه په يو ګزار په زړۀ او روح پروت خول مات شي او دې ازاد شي – |




# جرړه او کاڼے

یــو ســړي خپــل غــولي (صــحن) کښــې مېــوه دار بــوټے نــال کــړو – زمکه ئې ورله زياته تياره کړې ۀ وه خو بوټے ئې ولګولو –

خــو بيــا بــه ئــې د بــوټي پــوره خصــمانه کولــه اوبــه بــه ئــې ورکــولې، د تــراش خــراش خيــال بــه ئــې ســاتلو – يــو څــو کــالو کښــې بــوټے ځــوان شــو – او ســړي ســره اُميــد پېــدا شــو چــې راتلــونکي کــال تــه بــه مېــوه ونيسي –




خــو د دې اپوټــه بــوټے ورو ورو مــړاوے کېــدۀ – ســړے پرېشــانه شــو چــې څــو کالــه مــې پــه بــوټي خــواري وکــړه او هــر څنګــه محنــت مــې کوؤ – اوس چې د مېوو لګېدو وخت راغے نو بوټے اوچ شو؟




د ښـار یـو تجربـه کـار مـالي ئـې راوغوښـتو او ټولـه قیصـه ئـې ورتـه تېـره کـړه – مـالي پوهـه لرلـه – دې سـړي تـه ئـې ئـې ووې – تـا د بـوټي خیـال سـاتلو کښـې پـوټې بـې غـوري نـهٔ ده کـړې خـو د بـوټي وچېـدو وجـه دا ده چـې د بـوټې د جـرړې لانـدې سـخت کـاڼے دے – چـې د بـوټې د تاندېـدو مخـه ئـې ووهلـه – او نتیجـه کښـې بـوټے مړاوے شو اوچ شو –

مـالي نـور ووې تـا د بـوټي پـام لرنـه او خصـمانه کـړې ده خـو شـروع کښـې دې د دهٔ د جـرړې لانـدې پرتـو سـختو کـاڼو لـرې کولـو هڅـه کلـه هم نهٔ وه کړې –

اشاره:بنیاد او جرړه د یو څیز د تعمیر او تاندېدو اصل وي – کهٔ د بنیاد او جرړې خیال وهٔ نهٔ ساتلي شي نو سره د دې چې انسان به څو کاله د دهٔ پرمختګ وویني ولې ډېر زر به ناکامۍ او شرمندګۍ سره مخ شي –




# بس (لارۍ)

دا د سپلانيانو يوه دوه چتيزه لارۍ وه چې د ښار د يو طرف نه به روانه شوه -ځاے په ځاے به ودرېده او د ښار بل طرف ته به آخري سټاپ ته ورسېده – د دې بس (لارۍ) مسافر به د نورو ملکونو او ښارونو نه راغلي مختلف سپلانيان وو –

لارۍ به چې په يو سټاپ ودرېده نو ځينې سپلانيان به دې کښې سوارۀ شو او ځينې به کوز شول – دا پته به نۀ لګېده چې سورېدونکي سپلانيان څوک دي؟ او کوم چې به کوز شو نو پته به نۀ لګېده چې دوي چرته ځي ؟؟




د لرې ساعت ناسته به وه – مسافرو به د يو بل لباس او شکلونه پيژندل يا سلام عليک به وشو – لارۍ ښکلې وه – د سېل منظرونه هم ښۀ وو – خو د مسافرو تر مينځه هم غړي نۀ وه او دا عجيبه خبره وه –

اشاره:د دنيا خلقو ته کۀ د عارف په نظر وکتلي شي نو د سېل صفا ښار کښې د سپلانيانو لارۍ کښې د سورو مسافرو پشان ښکاري -

# شارټ کټ

په یو سټېډیم کښې د زغل مقابلې د پاره لار جوړه کړې شوه ـــ دا به د سټېډیم د یو طرف نه شروع شوه، ګولائۍ کښې د تېرېدو نه پس به په هغه پړاؤ ختم شوه چې د زغل شروع کېدونکي پړاؤ سره نزدې وۀ ـــ




د زغل مقابله شروع شوه لوبغاړو تېزه منډه کړه چې زر اخري پړاؤ ته ورسي ـــ یو لوبغاړے سست رفتار وۀ ـــ هغۀ چې وکتل منډه نۀ شي ګټلې نو ګولائۍ کښې د زغل نه بغېر نېغ د شروع پړاؤ نه اخري ګټونکي پړاؤ ته راغے ودرېدو ـــ رېفري ورته وکتل ـــ وې خاندل او د قانون په ماتولو ئې د دائرې نه بهر وویستو ـــ

| |
|---|
| اشاره:د ګټې په مقما موجودګي دا نۀ ثابتوي چې تا ګټلې ده ـــ د کامیابۍ د پاره د شروع نه تر اخره په تاکلي لیکه سفر هم ضروري دے ـــ |

# اسباب

يو سړے د لوږې او غريبۍ په ويره کښې راګېر وۀ – هغۀ سره فکر وۀ داسې نۀ وي چې د خوراک څښاک ټول اسباب ختم شي او ژوند کښې غريبي او لوږه راشي –




د دې ويرې لرې کولو د پاره هغۀ د شلو کمرو کور جوړ کړو – يوه يوه کوټه ئې د اوړو، وريژو او دالونو د بوجو نه ډکه کړه، دېپسو صندوق خانې ئې جوړې کړې – چې پېسې راسره وي غريب به نۀ يم –

سړي د خپل کور په صحن کښې مېښې او غواګانې هم وپاللې چې پۍ غوړي هم هر وختې وي او هيڅ کمے نۀ وي –




هره ورځ به سحر وختي پاڅېدو اول به د غلې دانې کوټې ته لاړو – صفائي به ئې وکړه چې غله کښې چينجې وۀ نۀ لګي –

بيا به صندوقچو ته ورغے او نوټونه به ئې وشمارل – بيا به ئې ځاروو ته پام لرنه وکړه– د دې هر څۀ کولو نه پس به هم هغۀ په ويره کښې وۀ چې راتلونکي وخت کښې اسباب کم نۀ شي او دې غريب نۀ شي –

يوه ورځ د غلې کوټه کښې د بوجو لوي سټاک (انبار) سره ولاړ وۀ – ناڅاپه بوجئ راوخوئېدې او د دۀ د پاڅه راپرېوتې – د دې ناڅاپي مصيبت نه وۀ نۀ تښتيدې شو او بوجو کښې ونښتلو، نزدې ورسره څوک نۀ وو چې د دې بوج نه ئې ايستلے وې – او د بې وسئ حالت کښې د بوجو لاندې ډوب پاتې شو –

اشاره:د ډير مال اسباب مالک چې د اسباب نه جُدا ځان له ژوند تېروي او اعلٰی مقصد ئې په نظر کښې نۀ وي نو يوه ورځ به ئې هم دغه اسباب لاندې وچقوي –




# چراغ (ډيوه)

په يو کلي کښې يو سړي سره د شړشمو د تېلو يو څو منګي وو – د دۀ د يوې کوټې کور وۀ – منګي به د دۀ د کټ لاندې او د کوټې څلورو طرفو ته پراتۀ وو –




هغۀ به چې تيارۀ کښې تلو راتلو نو منګو سره به ئې ډغره وخوړله او زخمي به شو – هغۀ پريشان وۀ نۀ ئې تېل بل چا ته ورکول او نۀ ئې پخپله د استعمال په چل هنر پوهېدو –

يو ځل د نږدې غر نه يو جوګي راغــے دې کلـي تـه راکـوز شـو – د کلــي خلـق د جـوګي نــه راچــاپېره شـو او د خپلـو مسـئلو حـل ئــې تـرې غوښـتو – د تېلـو د منګـو مالـک هـم دغلتـه ورسـېدو هغـۀ د تېلـو منګـو سـره د ډغـرې خوړلـو او ژوبـل کېـدو قصـه جـوګي تـه بيـان کـړه او د دې څـۀ حـل ئــې تـرې معلومولـو – جـوګي ورتـه ووې تـا سـره دومـره تېـل دي چــې د ژونـد ټـولې شـپې پـرې روښـانه کـولې شــې – او تـۀ يـې چې تپارۀ کښې درز وخورې، زخمي شې –

دغــه سـړي د جــوګي نــه تپــوس وکــړو – زۀ د دې تېلــو نــه څنګــه ښېګره پورتـه کـولے شـم – هغـۀ ورتـه جـواب ورکـړو "تـا لـه بـس د يـو وړوکي چراغ ضرورت دے" –

اشارې:
د تيلو منګي : علم ـ د معلوماتو پنګه
چراغ(ډيوه) : زړه ـ حکمت ـ بصيرت

# کوهے

یو ښار کښې د اوبو کمے وۀ – خلق تږي وو – د اوبو تلاش کښې به سروهلي بر وهلي ګرځېدل – ځينې خلق د بادشاه دربار کښې حاضر شو او د خپلې تندې شکايت ئې وکړو –




بادشاه حکم ورکړو چې د ښار صدر دروازې سره دې يو کوهے وکنستلے شي – ځاے وټاکلے شو – کنسته شروع کړې شوه – شروع کښې د خاؤرو انبارونه وو – بيا د کانو ګټو، ورپسې شګې وکنستلې شوې خلق په انتظار وو – او د دې خوارۍ مشقت کار ته ئې کتل –

يوه ورځ زيارکشانو ډمامه وغږوله ، اعلان ئې وکړو، کوهے وکنستلے شو –

صـفا رنـې او خـوږ اوبـهٔ راوتلـي دي، خلـق د څلـورو طرفـو نـه کـوهي تــه راورســېدل – د اوبــو ډولچــي ئــې راويســتې او خپلــه تنــده ئــې ماتــه کړه -

اشاره: کوهے: د بدن د ښار سينه کښې په خوارئ محنت کنسته کول غواړي د دې نه پس د زړهٔ کوهے صفا رنې او خوږې اوبهٔ ورکوي او د نورو روحاني تنده ماتوي-

# تنور

د یو تنور زوے چې زلمے شو نو پلار ته ئې ووې چې ډوډۍ لګولو او پخولو سره مې مینه شته خو دا مې بالکل نۀ ده خوښه چې زما په تن بدن کښې دې اور لګېدلے وي–

پلار ورته ووې تر څو چې تن بدن په اور کښې سوزېدلے تک سُور شوے نۀ وي تر هغې یو تنور هم ډوډۍ نۀ شي پخولے –




اشاره:کوم خلق چې د نفس تزکيې او رياضت نه بغېر روحاني ترقي غواړي هغوي په يو داسې خواهش پسې لګېدلي وي چې هيڅ نتيجه ئې نۀ راوځي –

# شربت

يو سړي شربت تيار کړو ــ هغهٔ د شربت په جګ کښې يو څو کاشغې چينې ګډه کړه ــ خو ږقول ئې هېر شو ــ ګلاس به ئې ډکوؤ او د څښلو د پاره به ئې پېش کوؤ ــ څښونکو ته به شربت پيکه محسوس شو او مخ به ئې وران کړو ــ




شربت جوړونکي ته د خپل دې غفلت احساس لا نهٔ وهٔ شوے چې دهٔ په شربت کښې چينې سمه نهٔ ده ګډه کړې ــ په دې وجه چينې د جګ وېخ کښې خوړه وه او دهٔ پيکه شربت ووېشلو جګ ئې خالي کړو ــ

اشاره:د انسان دننه استعداد، توان، صلاحيت (Potential) کهٔ وي هم تر هغې څهٔ معنې نهٔ لري تر څو چې دا پکار راولي او څهٔ نتيجه پېدا کړي ــ

# تبخے / تبغنه

پخلن ځـاے (کچـن) کښـې د اوږو اخښـلو خانـک یـو تبخـي تـه پـه کرکـه وکتـل – چـې تـهٔ څـهٔ تـک تـور یـې او د ټـول کچـن حُسـن دې خـراب کړے دے – ما ته وګوره ځومره ښکلے حسین و جمیل یم –

تبخـي ورتـه ووې زمـا پـه دې لمـن، چـې د ژونـد روزګـار زوږ کـړے دے – زمـا د حُسـن تـلاش مـهٔ کـوه بلکـهٔ زمـا حُسـن د دې کـور د شـازلمو پـه سـرو سـرو اننګـو کښـې وګـوره چـې زمـا د وریـت پریـت ځان د پاڅه په پخېدونکو ډوډیو زلمي شوي دي –

اشاره:حقیقي لاربښودان او پیشواګان خپله دنیا د راتلونکو نسلونو لویولو د پاره قربان کړي – دغسې دنیا دار خلق د خپلې ناپوهۍ په بنیاد په هغوي اعتراضونه هم کوي –

# آلو مټر

يو پخلي ګر د آلو مټر اينګلي تيار کړو او د کټوۍ د پاڅه ئې سر کېښودۀ – دې تنهائۍ کښې د آلو يوې غټې ډکرې د مټرو مخکښې خپله لوئي شروع کړه – ګو چې مونږ ټول يو ځائے پاخۀ کړے شوي يُو – خو تاسو مټر زمونږ په نسبت د وړوکي ذات خلق ئې او د آلوګانو ډکرو پخپل غټ والي فخر وکړو –

لږ ساعت پس پخلي ګر کچن ته واپس راغے پخلے ئې پلېټ کښې د کور صاحب ته پېش کړو –

پلېټ کښې آلوګان هم وو او مټر هم وو – د کور مالک آلوګان او مټر يوځائے په خُو نوړو کښې تر ستونې تېر کړل –

اشاره:په جسماني او علمي اعتبار د غټې جوثې څۀ فضيلت نۀ وي تر څو چې سړي کښې بنيادي خصوصيات نۀ وي-

# پکی / پکے

په یو چت د ښائسته پرو یو پکے لګېدلے وۀ- د کور یو نفر به چې د بجلۍ بټن آن کړه نو پکے به په چورلېدو شو – چې بټن به آف کړې شوه نو پکے به چپ چاپ ودرېدو – کۀ بټن به چا "آن" نۀ کړه نو پکے به په میاشتو چپ ولاړ وۀ –

یو مېږے د چت د پاڅه روان وۀ – پکي ورپورې ټوقه وکړه وئېل ئې اے وړوکي مخلوقه چرته روان ئې ؟

مېږي چې دا واؤرېدل نو ودرېدو – ورته ئې ووې د یو مخلوق عظمت (لوے والے) د هغۀ د حرکت نه معلومېږي – زۀ وړوکے مخلوق ضرور یم خو پخپل حرکت کښې ازاد یم او ستا پشان د بټن وهلو محتاج نۀ یم –

اشاره:حرکت او ازادي د یو شخصیت دوه اهم جزونه دي –

# چت

یوه چنچړه یو کور ته ورننوته ځکه چې د کور دروازه خلاصه وه – دې وکتل چې په سیلنګ رنګ په رنګ نقش و نګار شوي دي – دې کتل چې یو ماشوم د دې په لور هڅه وکړه – دا زر والوته بهر ته راغله د چت د پاڅه کښېناسته – دې کتل چې دپاسه صفا او ساده سُوده دے –




چنچړې چت ته ووې ستا په درون (دننه) کښې ښکلي نقش و نګار شوي دي – چت ورته ووې نهٔ داسې خو نهٔ ده – څهٔ چې زما بېرون (بهر) کښې وینې هغهٔ به درون کښې هم وي –




چنچـړۍ ووې داســې نــۀ ده زۀ اوس د دننــه نــه راغلــې يــم، او مــا ســتا اندرون ليدلے دے– هغۀ ډېر ښکلے او رنګين دے – کۀ زما منے نو تۀ ضرور داسې هيله وکړه او خپل اندرون سره تعلق پېدا کړه –

هغه تعلق به تا د باد باران او سوزونکو غرمو نه چې تۀ ئې کلونو راسې زغمے، بې نيازه کړي – د چنچړۍ په خبره چت فکر يوړو –

اشاره:انسان له پکار دي چې د خپل باطن سره د تعلق قائم ساتلو د پاره هر ممکن کوشش وکړي –




# ځنګل

يو سړے په ګور ځنګل کښې ځنګلي ځناورو راګېر کړو ـ هغۀ د سېل د پاره ځنګل ته راغلے وۀ ـ او په حفاظت ئې خپل کور ته تلل غوښتل ـ د هغۀ مخې ته شرمخان وو ـ لومبړې وې ـ ښي طرف ته هاتيان او زرافه ولاړ وو او




کينړ اړخ ته ځنګلي مېښې او غويان وو چې بره ئې وكتل نو ونو كښې ښكاري مرغۍ وي او له ويرې ئې ښكته ته كتلي چې ضرور ځنځېدونكي ځناور به هم وي ـ

كله به يو خوا تلو كله به بل خوا ـ كله به ئې دغو ځناورو له تېر وركړو ـ ځناور هم هوښيار وو خو دۀ كلكه اراده كړې وه هر څنګه چې وي د دوي نه به ځان بچ كوم او كور ته به په حفاظت ځم ـ دې ښۀ متحرک او په جوش كښې وو ـ




ناڅاپه ئې د ځناورو مینځ کښې خالي ځاے جوړ کۀ او منډه ئې کړه – تر څۀ ساعته ځناور دۀ پسې وو خو بیا ودرېدل –

دۀ منډه وهله اخر کور ته په خېریت ورسېدو –

اشاره:یو کامیاب انسان هغه دے چې خپل شعوري ذات د داسې اثراتو نه بچ وساتي چې دې په شا دیکه کول غواړي –




# تکنیکی نیکی

`ښـــار کښـــې د يـــو ســـوداګر لـــوے دکـــان وۀ – هـــره ورځ بـــه ښـــۀ خرڅـــون کېـــدلو – د کـــال اخـــر کښـــې بـــه تـــاجر څـــۀ پېســـې غريبـــانو لـــه صـــدقو کښـــې ورکـــولې خـــو عـــام ژونـــد کښـــې زيـــات سپور او شوم وۀ –




کوشـــش بـــه ئـــې کـــوو چـــې دوســـت يـــا رشـــته دار پـــه خـــوړه مېلمانـــۀ نـــۀ کـــړي او د نـــورو مېلمـــه وي – دکـــان تـــه بـــه چـــې خېرمـــار راغلـــۀ نـــو رټـــل بـــه ئـــې – خپلـــې ښـــځې او ماشـــومانو ســـره بـــه ئـــې هـــم معاملـــه د کنجوســـۍ وه – نېکـــي کـــول د هغـــۀ د مـــزاج حقيقـــي حصه نۀ وه –

یــوه ورځ دکــان کښــې ناســت وۀ چــې د ســامان یــو ډک پنــډ پــه دۀ راپرېوتــو او دې تــرې لانــدې شــو – د ســړک نــه اخــوا خلقــو چې د راپرېوتو درز واؤرېدو نو دکان ته راوزغلېدل –

دوي پــه ډېــره ګرانــه دکانــدار د درونــد پېټــي نــه راوويســتو – خــو د (ټرېــک) پنــډ بــوج دومــره زيــات وۀ چــې تــاجر ډېــر زخمي حالت کښې هسپتال ته ورسولے شو -

اشاره:نېکي څۀ تکنيکي شې نۀ دے پکار دي چې نېکي د انسان د مزاج مستقل حصه وي –

# سولر پاور(شمسی توانائی)

اسلم سره به د هغهٔ ښځه په جنګ وه چې هر کله زمونږ ورځې دومره روښانه دي نو بیا زمونږ د ژوند شپې دومره تورې ولې دي؟ اسلم فکر واخستو او فیصله ئې وکړه چې خپلې شپې به ارومرو روښانه کوي –




اخر یوه ورځ راغله اسلم د بازار نه "سولرپېنل" (نمري توانائي) واخستهٔ او په چت ئې ولګولو – سولر پېنل به د نمر نه توانائي وصول کوله او ښکته بېټرۍ ته به ئې رسوله– دې کښې چې وړومبۍ شپه راغله او د اسلم کور د بجلۍ په قمومو (بلبونو) روښانه شو نو د جشن ننداره وه –

اسلم د هغه ښځه او ماشومان ډېر خوشحاله شو – د هغوي ورځې او شپې دواړه روښانه شولې –

| | | |
|---|---|---|
| اشارې: | | |
| سولر پینل | : | د اسمان نه د روحاني طاقت تر لاسه کولو صلاحیت |
| د شپې روښانه کېدل | : | د شپې تیارې لرې کېدل |

# قلم Pen

یــو قلــم (پِــن) د ســیاهۍ نــه ډک وۀ – هغــۀ څــوکې (نِــب) تــه ووې چــې لیکــه – څــۀ ســاعت پــس څــوکې قلــم تــه خبــردارے ورکــړو چــې ســیاهي نیمــه پــاتې شــوه – یــو ســاعت بــه دمــه وکــړو – قلــم ووې مــونږ بــه یــو وار دمــه کــوؤ تــۀ لیکــل کــوه – تــر دې چــې زما باطن (دننه کښې موجود ټوله خزانه پکار راشي –

څــوکې ورتــه ووې چــې ســیاهي خــتم شــي نــو بیــا بــه مــونږ د څــۀ کــار یُــو؟ قلــم جــواب ورکــړو کلــه چــې ســیاهي ختمــه شــي نــو مــونږ بــه هغــه یُــو کــوم چــې بــه د کاغــذ پــه صــفحو لیکلــي شــوي وي –

اشاره:دا ژوند د عمل کولو یوه موقع ده – د دې موقع نه فائده واخلۍ څومره چې کېدلي شي– د ژوند د کتاب په صفحو لیکۍ –

# رنګ ساز او پشو

یوه پیشو د شپې د رنګساز دکان ته ورننوته تیاره کښې به هغۀ د رنګ یو ډبې سره وجنګېده او کله بل ډبې سره ډغره خوړله ــ پیشو د رنګه سپینه وه خو د رنګونو مختلفو ډبو سره ئې چې ټقرې ووهلې نو په رنګونو کښې رنګ شوه، ټوله شپه دکان کښې ګېره وه، سحر څۀ په ګرانه ووته خپل کور ته ورسېده ــ

چې د کور مالک ورته وکتل نو اول خو ئې وۀ نۀ پېژندو چې دا رنګینه پیشو څوک ده، بیا د هغه اشنا سترګو وپېژندله د پیشو مالک په صابن او سرفو ولامبوله ــ

لامبلو سره ټول حادثاتي رنګونه والوتل او بیا د سپین رنګ پیشو شوه ــ

اشاره:د انسان هغه رنګ باقي وي چې د هغۀ د ذات حصه شوي وي ــ عارضي رنګونه ختم شي او څۀ فائده نۀ ورکوي ــ

# ګاځره

یــو مــزدور پېســې جمــع کــړې د ګــاځرو د جــوس ایســتو مشــین ئــې واخستو – د یخنۍ موسم وۀ ګاځرې ئې کور ته راوړلې –

ګــاځرې بــه ئــې مشــین کښــې ورکــولې یــو طــرف تــه بــه د مشــین نــه جـوس وتلـو بـل طـرف تـه بـه د ګـاځرو پـوګ جمـع کېدلو – هغـه جـوس یو ځاے کښې راټول کړو او پوګ ئې د مشین نه بهر وویشتو –

اشاره:د انسان باطن کښې موجود جوس د کار څيز وي نور د ګاځرو پوګ وي چې خاؤره ئې وخوري –

# مُصله او نمونځګزار

یو نمونځګزار سره ډېره ښائسته مصله وه – پنځهٔ واړه وخته نمونځ به ئې کوؤ – بیا به ئې هره هفته مصله په صابن او سرفو وینځله کهٔ مصله به صفا هم وه خو دهٔ به بیا بیا وینځله –

یوه ورځ چې دې په جومات کښې وهٔ نو د مصلې د هغه حصې نه چې د خانه کعبې تصویر پرې جوړ وهٔ اواز راغے –

"تر اوسه پورې ما وینځې! چرته خپل ځان هم ووینځه چې معراج حاصل کړے "

اشاره:کهٔ زړهٔ صفا نهٔ وي نو د خپل ځان نه علاوه د څیزونو صفائي انسان ته روحاني فائده نهٔ شي ورکولے –

# شاک ابزاربر

هغـهٔ پــه دفتــر کښــې د میانــه درجــې مــلازم وهٔ ـــ د کلونــو خــوارئ محنـت نـه پـس ئـې يـو زوړ ګـاډے واخسـتو چـې د دفتـر نـه کـور تـه راتلـو کښـې اسـانې وې خـو د ښـار سـړکونه ځـاے پـه ځـاے کنـډکپر وو او د دهٔ ګــاډے هــم زوړ وهٔ نــو د ســفر دوران کښــې بــه ئــې جټکــې خوړلې ـــ دې سره به ئې طبيعت مړاوې شو ـــ




لـږه مـوده پـس ئـې مـالي حالـت ښـهٔ شـو نـو يـو ګـران قيمتـه ګـاډے ئـې واخســتو ـــ چــې ارام ورکــونکې وو ـــ د دې ګــاډې شــاک ابزاربــر دومـره ښـهٔ وو چـې ګـاډې بـه کـهٔ پـه وران ويجـاړ سـړک روان وو ـــ جهټکه به بالکل نهٔ محسوسېده ـــ

د ګـاډي د شـاک ابزاربـر قابلیـت سـړے د کنـډکپرو سـړکونو څخـه بـې نیازه کړو او د سفر دوران کښې به نۀ ستړے کېدو –

اشاره:"شاک" (Shock) چې برداشت (Absorb) کړے شي دا یو داخلي صلاحیت دے چې انسان د خارجي تنګ کوونکي عواملو څخه بې نیازه کړي، مطلب دا چې د صدمې زغملو باطني صلاحیت موجود وي نو خارجي کړاؤ تکلیف ورته هیڅ نۀ وي –

# هیډ لائټ

هغـهٔ ګـاډے تېـز چلـوؤ – سـړک خوشـــے وؤ – تکـه تـوره تيـاره وه – د دهٔ د ګـاډي مخکښــې بــاتۍ بلــې وې او د لـرې نــه راتلـونکي څيزونـه ئـې د لرې نه ليدلي شو –

د هيــډلائټس (مخکښـــې بـــاتۍ) تېــزې رڼـــا دې د تکـــې تـــورې شـــپې او د مـــوټر د تېزرفتـــارۍ بـــاوجود هـــرې خطـــرې نـــه محفـــوظ کـــړے وؤ – هغهٔ ګاډے چلوؤ او ښهٔ په حفاظت خپل منزل ته ورسېدو –

اشاره:دوراندېشي هغه وسله ده چې انسان د دنيا په دې سفر کښې د هر پېښېدونکي آفت نه محفوظ ساتلے شي او په حفاظت خپل منزل ته رسېدے شي –

# کوړا دان (د خزلو لوخے)

بلدیې د کوڅې په یو ګُټ کښې د خزلو یو لوے لوخے ایښے وۀ – کوڅه کښې څۀ شل کورونه وو – خلقو به د سبزو او مېوو د پوستکو ډکې تیلۍ (شاپرز) دغه کوړادان کښې ورلېږه کړې – ځینو خلقو به پاتې اینګلي هم کوړاډان ته ورغورزول، پرته له دي خالي بوتلونه، ډبي، ګتې وغېره به هم کوړا دان ته ویشتي شو –




اکثر به دا کوړادان ډک پک وۀ، بدبوئي به خوره شوه چې خوا کښې تېرېدونکي خلق به تري تنګ شو – بلدیې ته به ئې فون وکړو چې د بدبوئۍ لرې کولو د پاره دې کوړادان خالي کړے شي – دا سلسله به دغسې روانه وه –

اشاره:یو داسې سړے چې د هغۀ زړۀ د خلقو هر ځنګه کم درجې خیالاتو او جذباتو پناه ګاه وي هغۀ به ارومرو د خپل باطن نه کوړادان جوړوي چې بدبوئي به پکښې پیدا کیږي – پکار دي چې سړے صرف پاکیزه خیالات او نظریات قبلوي –

# د کوڅې بلب

یـوه کوڅــه کښــې د بجلــۍ ســتنې ســره بلــب لګېــدلے وۀ ــ د شــپې بــه د دې بلېـدو سـره کوڅـه روښـانه وه ــ خـو ورسـره بـه ئـې هـر لاروي تـه د تـورتم پېغـور هـم ورکـوۀ ــ ټـول لاروي د دې پېغـور څخـه تنـګ شـو ــ




یــوه ورځ چــې پــه کوڅــه کښــې څــوک موجــود نــۀ وو یــو ماشــوم راښـکاره شـو، کـاڼے ئـې اوچـت کـړو او بلـب ئـې پـرې وویشـتو ــ هغـۀ چـک چُـور پـه زمکـه راپرېوتـو ــ پـه بلـه ورځ د کـوڅې یـو اسـتوګن نـوے بلـب ولګـوۀ، چـې زیـات روښـانه وۀ، نـۀ ئـې پېغورونـه ورکـول نۀ ئې زبادنه کوله ــ

اشاره:د نېکۍ توفیق د الله د طرف نه انعام وي ــ په دې توفیق عاجزي اختیارول پکار دي ــ ګني نو دا انعام به د بل چا حصه شي ــ

# نقلي مالټې

احمـــر او اضـــغر د دهٔ دوســـتان وو – دواړه ګاونـــډيان هـــم وو – د دواړو دوستانو دا شـوق پيدا شـو چـې خپـل خپل صـحن (غـولي) کښـې د مـالټې بـوټي نـال کـړي – نـو دواړو خپـل خپل صـحن کښـې د مـالټې بوټي نال کړل –

احمـر يـو منظم هلـک وهٔ – هغـهٔ د خپـل بـوټي پـوره خصـمانه کولـه او د دې سـرڅنه بـه ئـې کولـه – پـه وخـت بـه ئـې اوبـهٔ او خـړه ورکولـه –




بـل خـوا اصـغر بـوټـے نـال کـړے وهٔ خـو چرتـه ئـې ورتـه کتلـي هم نـهٔ وو –

څـهٔ مـوده پـس د احمـر بـوټي مېـوه ونيسـله او هغـهٔ د خوشـحالۍ نـه پـه جـامو کښـې نـهٔ ځائېـدو – اصـغر تـه چـې پتـه ولګېـده چـې د احمـر بـوټـے د مـالټو نـه ډک دے نـو ډېـر پښـېمانه شـو – د دې پښـېمانۍ نـه د خلاصـېدو د پـاره ئـې يو ترکيب دا وکـړو چـې د بـازار نـه ئـې يـو څـو درځنـه مـالټې راوړلـې او خپـل بـوټي سـره ئـې ولګـولې او دغسـې ئـې احمر سره ځان برابر کړو –

ځينو خلقو خو تر دې ووې چې د اصغر بوټي د احمر نه زياته ښهٔ مېوه ورکړله – په بله ورځ د شپې تېزه سيلۍ راغله – د اصغر ټولې مالټې په زمکه راپرېوتې او د احمر بوټے سره د مېوو دانو قائم دائم وهٔ – د محلې خلقو ته اصليت معلوم شو او د اصغر پښېماني پخپل ځاے پاتې شوه -

اشاره:يو عمل چې بې لارې (Derail) کړے شي نو د هغې نه حاصلېدونکي مېوه به نقلي وي او د پښېمانۍ باعث به وي –

# مرتبه

د ام په یوه اونه څو کاله پس امونه ولګېدل – دا امونه ښهٔ پاخهٔ شو نو د خپلې خوشبوئۍ او رنګ په وجه ئې د خپلو پاڼو، څانګو او تنو جرړو نه ځان غوره ګڼلو لکه مطلوب او مقصود دا وي – نور د اونې هډو څهٔ حېثيت نشته –

د ام اونې بد ومنل، هغې پخو شوو امونو ته ووې چې دا د څو کلونو سفر وهٔ – د جرړې نه شروع شو بيا تنه شوه او بيا څانګې راوتوکېدې او په زرګونو پاڼو دې عمل کښې حصه واخسته –

دې موده کښې هر څنګه موسمونه راغلل ټولو په شريکه استقامت وښود او نن هغه ورځ راغله چې تاسو د امونو مېوه په دې اونه کښې موجود ئې – تاسو له پکار دي چې زبادنې په ځائے د دې ټولو عملونو او مرحلو شکرګزار اوسئ – د چا په وجه چې تاسو ته دا حيثيت درکړے شو تاسو چې زمونږ نه بغېر شته کېدلې نهٔ شوئ نو تاسو ته په مونږ فضيلت څنګه حاصل شو؟

اشاره:د مرتبې دعوه په هغه ذاتي فضيلت کېدې شي چې بل څوک پکښې شريک نهٔ وي – صرف د يو عمل د نتيجې په اخر کښې رابرسېره کېدل څهٔ خاص فضيلت نهٔ دے –

# کمزورے چت

یـو سـړي خپـل کـور جـوړ کـړے وۀ – چـې دېوالونـه بـره اوختـل او د چـت غوړولـو وار راغـــے نـو معمـار ورتـه ووې چـې لـس منـه سـريا (سيخ) راوړه چې په دي چت کښې واچولې شي–

سـړي د بـازار نـه پـوره لـس منـه سـيخ راوړو او د چـت پـه شـټرنګ ئـې بـــې ترتيبـــه ور اوغـــورزول د پاڅـــه ئـــې پـــرې کنکريـــټ واچـــول – دغســـې پـــه چـــت چرتـــه زيـــات ســـيخ وۀ او چرتـــه بالکـــل نـــۀ وۀ – نـــو شټرنګ چې پرانستے شو چت په يو درز راپرېوتو –

خلـق د افسـوس د پـاره د دۀ کـور تـه راغلـل – دۀ بـه ټولـو تـه دغـه وئېـل چـې مـا پـوره لـس منـه سـيخ اسـتعمال کـړے دے – پتـه نـۀ لګـي دا څـۀ وشو او چت ولې راپرېوتو –

اشاره:مقدار سره معيار ته هم پام کول پکار وي – يو معياري څيز هم انسان کاميابولي شي –

# د ګلاب ګل

یوه ویرانه کښې د ګلاب په بوټي د سور ګلاب ګل وسپړدے شو – ډوب رنګ او شانداري خوشبوئی د ګل ځواني نوره ښائسته کړه – او هغهٔ پخپل ځان کښې د تخلیق یوه کامله (پوره) نمونه وه

خو په دې بېدیا کښې د هغهٔ د لیدلو او بوئیولو د پاره څوک هم نهٔ وو – نو د تنهائی احساس ورچوکه شو – اتفاق دا چې په څانګه هم دغه یو ګل وهٔ – دهٔ داخلي او خارجي تنهائی په ډېر شدت سره محسوسوله –

ورو ورو دا تنهائی نوره زیاته شوه او نزدې وه چې د فراق په دې کېفیت کښې ګل پاڼې پاڼې شوے وې چې ناڅاپه دهٔ کښې دننه یو بل ځان پیدا شو –

دهٔ د خپل دننه څخه اواز راغے چې د هجر او فراق غم مهٔ خوره – ستا وجود صرف په دې پاڼو کښې نهٔ دے ستا یو مستقل حقیقت هم شته – تهٔ به ډېر زر خپل سُور لباس چاک کړے او حقیقت سره به یو ځاے شې –

اشاره:روحاني خلقو له پکار دي چې حقیقت ته د رسېدو د پاره د تنهائی احساس په ښهٔ طریقه وزغمي –

# بد صحبت

د امـرود پـه یـوه ځانګـه د دوو امـرودو مېـوې ځنـګ پـه ځنـګ شـوې وي – لـږه مـوده کښـې صـحت منـدې مېـوې شـوې – دغـو کښـې بـه یـو امـرود صـفا سُـتره او پـه بـدن بـه ئـې خیـرې خـاؤره نـۀ خوښـول د بـل امـرود صـرف خـاؤره خوښـه وه – بلکـې چینجـو سـره ئـې هـم دوسـتي جوړه کړې وه –

صــفا ســپېځلي امــرود، ملګــرے امــرود منــع کــوۀ چــې چینجــو ســره دوستي مـۀ زیـاتوه دا بـه سـتا دننـه ذات پـه شـر اختـه کـړي – خـو هغـۀ د ملګـري خبـرې منلـو تـه تیـار نـۀ وۀ – چینجـو سـره ئـې دوسـتي پـرې نښوده او هغوي د دۀ په ذات کښې لاره وکړه –

کلـه چـې د مېـوو راکوزولـو وخـت شـو نـو صـفا امـرود یـو طرفتـه جُـدا کېښـودے شـو او خرڅېـدو خرڅېـدو د بادشـاه د مېـوو د مجمـې (تـرۍ) ښـکلا شـوه – د چینجـو امـرود ښـکته وغـورزولے شـو او هلتـه خـاؤرو کښې سخا پمن خاؤرې ایرې شو –

اشاره:صحبت صالح ترا صالح کند صحبت طالع ترا طانع کند
د نېکانو په مجلس کښې به نېک شے او د بدانو صحبت کښې به خراب شې

# توره ښهره

يو سړي د شپې اوده شو نو چا په اودو کښې د هغه په ښهره توركي ولړولو هغه چې سحر پاڅېدو بازار ته لاړ – كوم دكان ته به چې تلو نو ځيني خلقو به ورپورې خندل او ځيني به تري ويرېدل –




ځينو خلقو ورته يادګيرنه هم وركړه چې ستا په ښهره توركي مرلي شوي دي – او خپله ښهره ووينځه – خو ده د هغوي خبرې توقي ګڼلې –

دهٔ چې بازار کښې د خپل ضرورت شیان واخستل او کور ته واپس راغے – دهٔ ته د خپل صحیح کېدو ادراک داسې زیات وهٔ چې دومره کړاؤ ئې هم ونکړو چې څهرې له لاس قدرې وروړي چې واقعي تورکے پرې لګېدلے دے –

هغهٔ ته خپل ځان سم صحیح ښکارېدو تر دې چې د سحر نه ماښام شو او یو ځل بیا په بستره اودهٔ شو –

اشاره:د یو سړي د ښهٔ کېدو معیار صرف د هغهٔ خپل سوچ نهٔ وي بلکې خپل ځان په یو معیار پلل پکار وي –

# د چوهدري دېره

کلـي کښـې د چوهـدري دېـره ښـکلې دېـره وه – پـه څـو ایکړه د شـینکي فصـلونو پټـي وو– یـو طـرف تـه ټیـوب وېـل (مشـیني کـوهـے) لګېـدلے وۀ – ټیـوب وېـل سـره نـزدې د یـو څـو کمـرو کـوړ وۀ – د کـور یـو خـوا تـه د څـاروو برانـډې وې – چـې پکښـې د اعلٰـی نسـل مېښـې او چېلۍ وې – پۍ، غوړي، سبزۍ او غله دانه هر څۀ پرېوانه وو –




یـوه ورځ یـو سـړے دې دېـرې تـه رانـوتـو – مخـامخ چوهـدرانۍ د رنګینـو پښـو پـه کـټ کښـې ناسـته وه – دې سـړي ووې زۀ چوهـدري صـېب سره لیـدو لـه راغلـے یـم – چوهدرانۍ دې سړي تـه پـه حېـرت وکتـل او وې وئېـل چوهـدري صـېب خـو کلونـه ووشـو وفـات شـوے دے –

اشاره:د انسان د ذاتي روحاني حقیقت نه بغېر د دېر مال جائیداد ډک ژوند د هغۀ دېري پشان دے چې چوهدري ئې وفات شوے وي–

# ستيک هاؤس

د سپرلي مياشت کښې يو ستېک هاؤس (د غوښې دکان) په وېړ چمن کښې کرسۍ لګولې وې – يو سړي په دې خوشګوار موسم کښې ستېک (غوښه) خوړله – ناڅاپه يوه ايراړه غوا دغلته روانه وه – هغې دې سړي ته او پلېټ کښې پروت "ستېک" ته وکتل خو څۀ اثر ئې وانخست –




سړي د غوښې پوټے وخوړۀ، خپل ګاډي کښې کور ته روان وۀ – په لاره کښې ئې يوه جنازه وليده – جنازې ته ئې سرسري وکتل څۀ اثر ئې وانخستو او په مخه روان شو – لکه څنګه چې غوا د دې نه بې خبره وه چې پلېټ کښې پروت د غوښې پوټے د دې د يوې خور ذبح کېدو ته اشاره ورکوله دغسې چې دا سړے د جنازې په خوا کښې تېرېدو او خبر نۀ وه چې ډېر زر به د دۀ هم وار تېر شي –

اشاره:سړي له پکار دي چې د غوا نه زيات هوښيار وي –

# د اوبو ټېنکۍ

یــو ســړي کــور جــوړ کــړو – مکــان تــه د اوبــو رســولو د پــاره ئــې د زمکــې لانــدې د اوبــو ټېنکــۍ جــوړه کــړهٔ – چــې پکښــې بــه د بلــدیې د رسد اوبهٔ ذخیره کېدې –

پرتــه لــه دې یــوه ټېنکــۍ اوبــو ســټور کولــو د پــاره د چــت د پاســه جــوړه کــړې شــوه – د زمکــې لانــدې اوبــو ټېنکــۍ نــه اوبــهٔ د پمــپ پــه ذریعــه د چــت ټېنکــۍ تــه رســولې شــوې – او بیــا ددې بــره ټېنکــۍ نــه اوبــهٔ پــه پــائپونو کښــې د کــور بــاورچي خــانې، واش روم او د ضــرورت نــورو ځایونو ته رسېدلې –

د کــور مالــک انجینئــر ســره پــوره بحــث وکــړو چــې د زمکــې لانــدې د اوبــو ټېنکــۍ بــس وه– کــور تــه ئــې اوبــهٔ رســولې شــوې – د چــت د پاڅــه ټېنکۍ ته څهٔ ضرورت وهٔ –

انجینئــر ووې ګــو چــې ښــکته ټېنکــۍ کښــې بــه اوبــهٔ موجــود وي خــو تــر څــو چــې دا پــه پمــپ بــره وهٔ نــهٔ خېژولــې شــي او بیــا د چــت د ټېنکــۍ نــه ښــکته را نــهٔ وســتې شــي تــر هغــې بــه د اوبــو نظــام دې کــور تــه د اوبــو رسد یقیني نهٔ کړے شي –

> اشاره:د یو انسان صلاحیت چې تر څو د ښکته نه پورته لاړ نهٔ شي نو هغه نتیجه نشي ښولې مادي او روحاني دواړه دنیا په دې اصولو چلیږي –

# پهلوان

یو بادشاه د پهلوانانو د کشتۍ (پرزونو) شوقین وۀ – خپل یو وزیر ته ئې حکم وکړو چې یو څو شاهي پهلوانان تیار کړي – د دې مقصد د پاره ئې وزیر ته د شپږو میاشتو مهلت ورکړو –




وزیر د ټول ملک نه یو څو زلمي غوره کړل چې دوي کښې ځیني داسې پهلوانان جوړ شي چې د بادشاه د معیار مطابق وي –

دۀ په شپږو میاشتو کښې په دې پهلوانانو یو څو منه غوښه، مېوې، پۍ او غله وخوړول او قسما قسم ورزشونه ئې پرې وکړل –

پـه ټـاکلي وخـت وزيـر يـو پهلـوان غـوره کـړو او بادشـاه تـه ئـې پـېش کـړو، چـې دا هغـه رسـتم د زمـانې دے چـې هـر پهلـوان لـه بـه مـاتے ورکوي –

بادشاه پهلـوان تـه ووکتـل نـو وړومبـے نظـر ئـې د هغـۀ پـه خېټـه پرېوتـو چـې د پهلـوان د مټـو د اعصـابو نـه زياتـه ښـکاره وه – بادشـاه، وزيـر تـه ووې تـا پـه دۀ پـه منونـو غوښـه او غلـه د دې د پـاره خوړلـه چـې د خېټې وازده ئې زياته شي !

مـا تـه خـو د پهلـوان د غټـې خېټـې ضـرورت نشـته – د پهلـوان د مضبوطو مټو او کلکو پټو ضرورت دے –

اشاره:د مال اسباب استعمال کۀ د دې د پاره وي چې مادي جسم غټ شي نو دا خو اضافي صفت نۀ پېدا کوي –
کامياب انسان د مال اسباب په استعمال يوه نوې دنيا پېدا کوي –

# خانقاه

په یو کلي کښې د یو بزرګ خانقاه وه – هره ورځ به دې کښې نیاز وېشلے شو – هره ورځ به د وريژو دیګونه خانقاه ته راوړلې شو – او په نیاز اخستونکو به ویشلي شو–

د دې کلي دوه هلکان وسعت او کلفت چې کورونه ئې یو بل ته نزدې وو، هره ورځ به خانقاه ته د نیاز اخستو د پاره تلل – او ډک ډک لوخي به ئې راوړل –

د کلفت کور والا به اکثر وئېل ته ډېر لږ نیاز کور ته راوړے – مونږه پرې ماړۀ هم نۀ شو – بل خوا د وسعت د کور خلق ښۀ په مړه ګېډه خوراک وکړي او څۀ وريږي پاتې هم شي –

کلفت به کور کښې همېشه دا وئيل چې نیاز ورکونکے ما له هم دغه هومره راکوي او دې کښې زما څۀ قصور نشته –

یوه ورځ د کلفت ښځې د خانقاه متولي ته ګیله وکړه چې زمونږ برخه کمه وي کلفت ته دومره کم نیاز ولې ورکولے شي او وسعت ته ښۀ زیات ورکولے شي –

د خانقاه متولي جواب ورکړو د کلفت لوخے وړوکے دے او د وسعت هغه لوے وي – نو نیاز په زیات مقدار کښې راشي –

اشاره: د یو نعمت حاصلولو د پاره ضروري ده چې د خپل زړۀ او ذهن لوخے هغه هومره لوے کړي چې نعمت پکښې ځاے شي –

# ماشوره

هغهٔ یو مشهور تاجر وهٔ – او ټول بازار کښې پېژندلے شو – بازار کښې د هغهٔ دوستۍ او تعلق هم د تاجر په حواله وهٔ – خو هغهٔ به چې ماښام کور ته راغے نو د ښځې د پاره هغهٔ یو خاوند وهٔ –




چې د تاجر نه جُدا قسمه رشته وه – ماشومانو به ورته ابو وئیل زر به ترې راچاپېره شو – دغسې ماشومانو سره د هغهٔ رشته بل قسمه وه –

هغهٔ به چې مور پلار ته حاضر شو د زوي والي رشته به وه او دا د هغهٔ رشتې نه جُدا وه په کومه رشته چې دې پلار وهٔ، ځینو خلقو سره د ورور رشته وه – د ځینو هغهٔ ماما وهٔ –




د چــا تــرهٔ وهٔ ــ هــره رشــته د بلــې نــه قــدرې مختلـف وه ــ د اسـتاذانو پــه وړانــدې بــه هغــهٔ لکــه د شــاګرد ولاړ وهٔ ــ او چــې جومــات تــه بــه لاړ نو نمونځګزار به شو ــ

پــه دې شــکلونو کښــې د هغــهٔ ژونــد تېرېــدو ــ هغــهٔ چــرې دا ســوچ هــم نهٔ وهٔ کړے چې دې کښې يوه عجيبه خبره هم وه ــ

يو ځل داسې وشو چې په تجارت کښې ورته ډېر نقصان وشو ــ دا صـدمه دومـره لويـه وه لکـه چـې د دهٔ پـه ذات کښـې يـوه زلزلـه راغلـې وي ــ او دهٔ تــه محســوس شــوه چــې د دې ټولــو روپــو او رشــتو د اژدهام په تل کښې يو څيز د راپورته کېدو هڅه کوي ــ

د زلزلـې دراړونـه دغـه انښـتي څيـز لـه بـره راتلـو کښـې مـدد ورکـوو ــ ورو ورو پوهــه شــو دا پــروت غلــے څيــز د دهٔ خپــل اصــل ذات دے ــ چـې د امـروزه کـارونو او مختلـف قسـمه کردارونـو پـه مينـځ کښـې پـټ پــروت پــاتے شــوے وهٔ ــ اخــر هغــهٔ خپــل ذات وپېژنــدلو چــې د دغــو ټولـو رشـتو نـه جُـدا وهٔ ــ د کـوم چـې امـروزه ژونـد کښـې دهٔ خپرونـه کوله ــ

اشاره:کامياب انسان هغه دے چې د دنيا د ماشوړی دننه څخه خپل اصلي ذات بهر راوباسي ــ




# د اینډرومیډا عجیبه مخلوق

د اېنډرومېډا په سیاره داسې خلق وسېدل چې د هغوي عملونو به د شبیهاتو شکل اختیاروو کۀ خپلو کښې به ئې حسد کوو نو د اور یوه شغله به جوړه شوه کۀ غلا یا دوکه (فراډ) به ئې کولو نو یو تور ښامار به وجود کښې راغے – خو عملونو څخه وجود کښې راتلونکي شبیهونه به دوي ته نۀ ښکارېدل –

د اعمالو دې شبیهونو به شعور لرلو او د دوي د خپلوانو خلاف به




ئې کاروائۍ کولې – د دې وجوهاتو په بنا د سیارې خلق په نااشنا عجیبه رنځونو کښې اخته شو– د اور شغلو به په ویښه اودو کښې د دوي دننه اضطراب پیدا کړو – تورو ښامارانو د مازغو – سرکټ او د وینې نرو رګونو کښې هلچل پیدا کړو – نو له دې کبله به زیلې خلق د وخت نه مخکښې رنځوران شو او بوډاګان به شو –

اېنډرومېـدا د بصـيرت خاونـدان پوهـه شـو او خلـق ئـې د حسـد، غـلا، فرېـب او نـورو اخلاقـي برايـو نـه پېدا کېـدونکو عـذابونو نـه خبـر کـړل – خـو خلـق د دې نالیـدلو څیزونـو، منلـو تـه تیـار نـهٔ وو – او څنګـه چې وو هغسې پاتې شو –

د اېنډرومېـډا پـه سـياره هـر څنګـه دکانونـه پرانسـتي شـو – او داسـې خلـق هـم راغلـل چـې د دې رنځونـو د عـلاج د دروغـو دعـوې ئـې کـولې – د بصـيرت خاونـدان (پوهـه خلـق) پـه دې هـر څـهٔ پرېشـانه وو خو خپل اصلاحي کوششونه ئې جاري ساتلي وو –

اشاره:د انسان عملونه اثرات پېدا کوي او دا اثرات په دوي پسې لګېدلي وي –

# مالګین کیر

یو پخلي ګر د وریجو کیر پخولو – هغهٔ یو څو کلو پېو کښې وریجې واچولې او کیر پخول ئې شروع کړو –

د هغهٔ مخې ته د شیشې دوه لوخي وو په یو کښې سپینه مالګه وه بل کښې سپینه چینې – پخلي ګر مالګه، چینې وګڼله او په کیر کښې ئې ورګډه کړه –

کیر چې تیار شو نو د خوړ کیر په ځائے ماګین کیر شو – پخلي ګر پخپله غلطۍ ملامته وهٔ، هغهٔ صرف په سطحي نظر اعتبار کړے وهٔ او د لوخي د همرنګۍ په وجه ئې دوکه وخوړله -

اشاره:د سطحي نظر نه وړاندې د مزاج شناسۍ ژور علم تر لاسه کړئ ، چې د ناګهاني شرمندګو او ملامتیا نه بچ پاتې شئ –

# د پام اونه

باغ کښي د کجورې اونه وه – چې ژوند ئې د يو منظم انسان پشان وۀ – دوه درې پاڼې به ئې وې چې دا به لوې شوې نو دوه درې پاڼې به نورې راووتې – د نوې پاڼو راوتو سره به زړې پاڼې وريږږدې – دې مهال کښي به ئې تنه لږه اوږده شوه –

تنه به چې اوږدېده نو د لاندې نه به ئې تنه غټوله هم او جرړه به ئې زمکه کښي مضبوطوله –

د کجورې اونه په دې طريقه لوئېده، نوې پاڼې به ئې راټوکولې – او زړې پاڼې به ئې غورزولې – تنه به اوږدېده – غټېده او جرړه به مضبوطېده – دا کار به پرله پسي جاري وو – يو څو کالو کښي به دا کجوره يوه مضبوطه خوشنما او لوړ قامته اونه شوه –

اشاره:ارتقا او ترقي چې په طريقه او پرله پسي وي نو انسان يوه ورځ خپل مقصد تر سره کړے شي-

# هارمونی (هم غږي، همخيالی)

په يو باغ کښې د سروو، کجورې، سک چين، السټونيا، امرود، مالټا، آلوبخارا (الوچې) او انځر او نور قسمه اونې وې – په زمکه د تکو شنو وښو قالين غوړېدلے وۀ – د ګلونو کيارۍ د ګلابو، چمبېلو، او نورو قسمونو




ګلونو نه ډکې وې –

سحر وختي تازه هوا چلېده – بلبلان، کوئېلې، چنچړې، کونترې او رنګ په رنګ مرغۍ په اونو کښې ناستې خپله خپله ژبه کښې په خوږو اوازونو چغېدې – رنګ، نسل او هر ډول اوازونو د يو خوشګوار وحدت احساس ورکولو – داسې لګېده چې دا باغ د ټولو اونو، او مارغانو په شمول يو شخص وۀ –

اشاره:د يو هم غږي همخيال(Harmomions) معاشرې قيام د کائنات په مقاصدو کښې يو مقصد دے –

# فيض اباد فلائی اوور

د فېض اباد په مقام به اسلام اباد، راولپنډی، پېښور، لاهور او مري طرف ته تلونکو سړکونه يو بل سره ګډوډ شو – حادثې به کېدلې – لارې به بندېدلې او خلق به په ګنټو ګنټو په کړاؤ اخته وو –

د دې حالت تر مخه حکومت په دې مقام د فلائي اوور جوړولو فېصله وکړه څۀ موده کښې د فلائي اوور تعمير سر ته ورسېد –

فيض اباد فلائيَ اوور



اوس د ټولو طرفونو ټک راتګ د يو بل لاره نۀ وهي او په اسانه چلن روان وي –

نۀ لارې بنديزي، نه انتظار او نۀ بل څۀ کړاؤ تکليف شته۔

اشاره:د علم، معرفت، نظرياتو او خيالاتو ښۀ نتيجه هله راوځي چې يو بل سره ښکر نۀ اړاموي – خپلو کښې مزاحمت ته لار ورکول لوے حکمت دے –

# دننہ نقص

يو زميندار سره يو څو زمکې وې (پټې وو) چې کرونده ګرو ته ئې په ټېکه ورکړې وې – دغو کښې يوه زمکه (پټے) چغر سړي سره وۀ – دا سړے




په يوه سترګه کاڼا وۀ – هغه زميندار سره لوظنامه کړې وه چې د پټي د آمدن نيمه حصه به د مزدورئ په توګه وصولوي –

په وړومبي کال دې چغر ښۀ خواري محنت وکړل – د پټي د پېداوار نيمه حصه ئې وصول کړه چې د هغه د کور بال بچ د اخراجاتو د پاره پوره وه –

بيا ئې زړۀ له خيال راغے چې زيات محنت کولو سره پېداوار زياتېږي او زميندار ته زياته ښېګړه رسي – نو محنت به ئې بيا کم کوۀ او مخې کال ته

پېداوار کم شو – دې سره د زمیندار فائده هم کمه شوه بلکۀ د دۀ د حصې منافع هم کمه شوه –

ورپسې کلونو کښې دې نور لټ شو ، نتیجه دا شوه چې دۀ ته ورکېدونکې پېسې دومره کمې شوې چې د کور بال بچ ژوند کښې تنګسیا راغله خلقو به ورته د غریبۍ پېغور ورکولو – خو هغۀ به ټولو ته دا وئېل د زمکې پېداوار کم دے او زمیندار حصه کمه راکوي –

دۀ چرې په خپل طرزِ عمل غور نۀ وۀ کړے چې د دې ټولې معاملې جرړه خو د دۀ خپل سوچ او طرزعمل دے –

یوه ورځ د دۀ ښځه د غریبۍ نه تنګه شوه نو مروره د مور کور ته لاړه – او دې یوائې پرېشانه ناست وۀ – څوک وو چې دې ئې پوهه کړے وې!! کوم نقص چې د دۀ ژوند تباه کولو هغۀ د دۀ دننه نقص وۀ –

اشاره:انسان ته چې کوم مصیبتونه د بهر نه پېښېږي دا د دۀ دننه نقصونو په وجه وي –

# د بادرنګ ګل

د سبزۍ په يو دکان تازه بادرنګ د خرڅ د پاره راوړلي شو – بادرنګ داسې راپرېکړي شوي وو چې د هر بادرنګ په سر به د هغې يو ګل هم وۀ – د بادرنګ ګلونه د جسمونو په لحاظ هسې په نوم وو –

دکاندار دا بادرنګ په يو کرېټ کښې سنبال کېښودل – دې کښې د يو بادرنګ نظر د دکان په کاؤنټر پروت ګلدان کښې په ګلونو پرېوت –

هغۀ ګلونو ته غږ وکړو چې ستاسو شکلونه خوشنما دي، خو تاسو سره




زمونږ پشان جسمونه پېوست نۀ دي – ګلونو چې د بادرنګ خبره واؤرېده نو مُسکي شو بيا يو ګل جواب ورکړو – مونږ ځانګړي ګلونه يُو د رنګ، حُسن او خوشبو مرقع – دا يوه اوږده قصه ده چې مختصر بيانئې دا دے مونږ اوس د حسبونو نه ازاد شوي يُو –

اشاره:ژوند د کثافت نه د لطافت په لوري پرمختګ کوي –

# د حکایاتو خلاصه

نن په وړوکي اختر 2021ء زما پام راګرځولے شوے دے چې زۀ د دې عثماني حکایتونو خلاصه هم ولیکم – نو دا خلاصه به راتلونکو کرښو کښې د یو داسې امېل په شان وړاندې کولې شي چې د دې سل (100) دانې ي –

(۱) د خلقو تر مینځه د عقلونو او شعور درجو کښې فرق دے – د دې خیال ساتئ -

(۲) کۀ د زماني ګردش سره یو ځاے ګردش وکړے شي نو د انسان نه به خپل ذاتي اوصاف هم پټ شي –

(۳) علم بار مۀ ګڼئ، د دې د مغز نه فائده پورته کوئ –

(۴) جسماني حواس او خپل جذبات د خپل مرکزي ذات نه په څۀ فاصله کښې ساتئ –

(۵) جسماني حواسو سره سره د روحاني حواسو د پېدائښت فکر کوئ –

(٦) یاد لرئ هوس ستاسو د جسم قاتل دے – مبادا تاسو اسمانونو ته ور وړاندې شئ –

(۷) ګو چې د نېکۍ او بدۍ لوبه جاري ده ، نېک بختي دا ده چې نېکۍ سره ودرېږئ او د بدۍ د لار مخنیوے وکړئ –

(۹) عبادتونه په ذات کښې د ځایولو د پاره ضروري ده چې د ځان لوخے مستحکم وي –

(۱۰) عقل د تیارې لارې چراغ دے او د څۀ سفر کولو نه پس تېارۀ ختم شي –

(۱۱) خپل توان صلاحیت زیات کړه او بیا پخپل ځاے جمع زړه کښېنه –

(۱۲) صرف د داسې رزق حاصلولو خواهش کوه چې ستا پکار راځي –

(۱۳) د خلقو مرتبې د یو لوے سکیم تابع وي – له دې کبله د ټولو خلقو قدر کوئ –

(۱۴) د اعلٰی درجو ژوند ته د پرمختګ کولو یو دلیل دا دے چې د زمان او مکان نه د ماؤرا کېدو هڅه وکړئ –

(۱۵) خپل ذاتي شعور، کائناتي شعور سره وتړه –

(۱۶) د جسم نه علاوه هم د خپلې موجودګۍ احساس پېدا کړئ –

(۱۸) ژوند کښې د ګڼو کردارونو ادا کولو باوجود خپل اصلي شعوري ذات وپېژنئ –

(۱۹) د کائنات په وحدت غور وکړئ – او د موجوداتو شمېر وحدت ته د راتاولو هڅه وکړئ–

(۲۰) یاد ولرئ ستاسو سفر د انسانانو د محبت نه ورتېر شي، الله طرف ته ځي –

(۲۱) نېکي داسې کوئ چې هغۀ داسې فائده ورسوي چې ستاسو خپل ذات تقریباً غېر موجود وي –

(۲۲) تر کومې چې ستاسو سلوک نورو سره ښۀ وي – نو دا فکر مۀ کوئ چې ګڼي تاسو ته رسېدونکي وسیلې به چرته کمې شي –

(۲۳) صرف د خلقو په ظاهر مۀ ځئ د دوي نفسونو کښې دننه هم ګورئ –

(۲۴) زیاتې پرېشانۍ داسې دي چې توان صلاحیت زیاتوي او خوشحالۍ بیا راژوندۍ کوي–

(۲۵) د انسانانو هغه ټولګي چې په څۀ وجه په وروستو ځي دوي د دغه عذاب نه ایستل زمونږ ذمه واري ده –

(۲۶) د ګڼو نظریو نه وروستو مخکښې کېدل څۀ فائده نۀ ورکوي – تر کومې چې د یوې نه باقاعده آغاز ونکړي –

(۲۷) خپل ځان په يوه لويه کسوټۍ (پيمانه) وپلۍ ګني نو انسان به په کم درجه ودرېږي –

(۲۸) ژوند کښې پېښېدونکي واقعات اصل کښې درس (سبق) وي د کاميابېدو د پاره دا درسونه په غور لوستل پکار دي –

(۲۹) انسان چې خپله اصلاح نۀ شي کولې نو د فطرت قوتونه، څۀ موقع ورکړي بيا ئې تباهۍ طرف ته ديکه کړي –

(۳۰) د کامل عرفان خلق خپل ظاهري ماحول کښې عيار (چالاک) نۀ وي –

(۳۱) چې ستا مخه د کائنات مرکزي شعور پله وي نو د دې ژوند مشکلات او ستونزې به درته اساني محسوس شي –

(۳۲) اعلٰی شعوري ذات انتهائی لطيف وي، هغۀ د انا کثافت نۀ قبلوي –

(۳۳) داسې نشي کېدې چې تۀ زمکې او اسمان دواړو سره تړلے ئې –

(۳۴) د کومو خلقو چې روحاني حواس بېدار نۀ وي هغوي روحاني حقيقتونو څخه انکار کولو کښې مجبوره وي –

(۳۵) دا څيز ډېر دردناک وي چې د عملونو نتيجې په عمل کونکو او د هغوي په خپلوانو اثرانداز کيږي –

(۳۶) تاسو به حقيقت ته په ورو ورو رسېږئ او د علم نه پس تجربه او مشاهده هم ضروري ده–

(۳۷) د حالاتو تلخي ستاسو اصلي جوهر ته نقصان نشي رسولے –

(۳۸) د انسان په ترقۍ کښې لوے خنډ، پرله پسې د معمولي مقصدونو د پاره ژوند تېرول دي –

(۳۹) د داسې خوارۍ مشقت نه ډډه کوئ چې خاص نفع نۀ ورکوي –




(۴۰) ازاد وسېدل لویه خوبي ده –

(۴۱) ځومره وسیلې چې مونږ ته رارسي، دا د یو کړکېچنې سلسلې نه تېرې شوې وي –

(۴۲) دنیا کښې د خلقو فطرت کښې فرق وي – دا قبلول پکار دي –

(۴۳) د انسان سفر خارج او باطن دواړو کښې پکار دے –

(۴۴) د کشف خاوند له ضروري ده چې یوه لویه هستي خپله لاربنود کړي ګني نو خوب او خیال کښې به ځان ضائع کړي –

(۴۵) کائنات دومره منظم دے چې دې کښې غافل سړے د شرم باعث شي –

(۴۶) ظاهري چمک دمک او متابعت د یو څیز د حقیقت ناپ کولو صحیح پیمانه نهٔ ده –

(۴۷) د مادي ترقۍ زغل د ډېرو خلقو نه فطري ازادي وشوکوي –

(۴۸) زمکه هم ژوندے مخلوق دے او د ماحولیاتو خرابۍ ته پام ورکوي –

(۴۹) خپل شعوري ذات پخپل ذهن مقدم ګڼه –

(۵۰) پاکیزه رزق وړومبۍ نېکي ده – صدقات او خېرات د دې نه زرغونېدونکي نېکي ده–

(۵۱) کهٔ تهٔ د عرفانِ ذات مسافر یې نو د خپل ذات د مکان دننه پرانستل مهٔ هېروه –

(۵۲) فائده د انسان خپل ذات ته رسولي شي پس منظر یا پېش منظر اهم نهٔ وي –

(۵۳) د خپل ذات تکمیل، مکمل او په منظمه طریقه پکار دي ګني نو د نیمګړي عمل نتیجه به نیمګرې وي –







(۵۴) روحاني یا شعوري ذات د جسم نه جُدا وجود لري –

(۵۵) بې ذوقه خلق، د باذوقه خلقو کمال ځکه نهٔ مومي چې دوي کښې لطيف ذوق نهٔ وي –

(۵۶) وراثت کښې رسېدلي خصلتونه، په تربيت کولو يو خاص لوري ته پرمختګ کولي شي–

(۵۷) کوم حرکت چې د اصولو نه يو طرف ته وي دا فساد پېدا کولے شي خواه کهٔ حرکت کوونکے هر څومره معصوم ولې نهٔ وي –

(۵۸) ګټه (فتح) يو مقام ته اُصولو سره د رسېدو نوم دے –

(۵۹) د روح يا ملي شعور پېدائش د جسم د ماتېدو طلبګار وي –

(۶۰) د آغاز نه وړاندې د آغاز نيت هم غوره پکار دے ګني نو پرمختګ به پائښت نهٔ مومي–

(۶۱) په ژوند کښې متناکر نفوس د متعارف په مقابله کښې زيات ملاويږي –

(۶۲) پخپل مال اسباب سور اوسه –

(۶۳) کهٔ محسوس کړے چې ژوند کښې خوند نشته نو خپل حرکت کښې بدلون راوله –

(۶۴) کهٔ د زړهٔ چراغ مو بل نهٔ کړو نو خپلو جذباتو کښې به ډوب شې –

(۶۵) کهٔ څهٔ موده پرله پسې محنت وکړې شي نو بيا د کم محنت يا بغېر محنت هم مېوې ترلاسه کېدې شي –

(۶۶) وراثت کښې کهٔ څوک د فضيلت دعوه کوي نو هغه خصلتونه به هم پيدا کوئ چې د دغه وراثت امتياز (ځانګړتيا) وي –

(۶۷) د محنت خوشنما مېوه د مزدور په خيرنو لاسونو فخر کوي –







(۶۸) مادي حجم د شعوري امتیاز نه بغېر بې معنې وي –

(۶۹) مرتبه کښې کۀ وړوکے سړے ازاد وي نو د داسې اعلٰی مرتبې د سړي نه غوره دے چې په اکثرو معاملو کښې ازاد نۀ وي –

(۷۰) تۀ خپل ذات کښې دننه سره تعلق پېدا کړه نو بهرنے حُسن ښکلا به دې هېر شي –

(۷۱) د داسې خلقو نه پرهېز کوئ چې تاسو په شا دیکې –

(۷۲) زیات خلق د ځناورو پشان د خپل اخرت نه غافله وي –

(۷۳) نېکي د خپل مزاج حصه کړئ چې انسانانو ته علم ښېګړه ورسوي –

(۷۴) د اعلٰی شعور نسبت د هغه رڼا پشان دے چې د نمر نه حاصلېږي –

(۷۵) ژوند د عمل موقع ده دا موقع تر اخره استعمال کړئ –

(۷۶) یاد ولرئ کچه رنګونه ختم شي پوخ رنګ کښې ځان رنګ کړئ –

(۷۷) اخر کښې بس خپل خالص ذات وي او د دې فکر وکړئ –

(۷۸) خپل ځان ووینځئ چې سورلي ووینځلي شي نو سور هم ووینځلي شي –

(۷۹) کۀ تاسو مرتبې ته رسېدلي ئې او د همسفرو درد جذب کولې شئ نو تاسو په صحیح لوري روان ئې –

(۸۰) دوراندېشي انسان د مصیبتونو نه خلاصوي –

(۸۱) تاسو خپل ځان د خلقو د جذباتو او احساساتو د پناه ګاه مۀ جوړوئ –

(۸۲) کۀ یوکېدو سره عاجز نۀ شوئ نو دا مرتبه به درنه زر وشوکولې شي –

(۸۳) مېوه په یو ټاکلي وخت او طریقه حاصلېږي دې کښې څۀ قسمه چالاکي د شرمندګی باعث شي-







(۸۴) د مرتبې دعوه صرف د ذاتي جدوجهد نه پس کول پکار دي –

(۸۵) د مقدار څۀ حېثیت نۀ وي – کۀ چرې دې کښې په مقرره پېمانه، معیار موجود نۀ وي–

(۸۶) روحاني سفر کښې به د تنهائۍ احساس یو وخت ضرور نتیجه راوړي –

(۸۷) یاد ولرئ د نېکو او بد صحبتونو ګاډي جُدا جُدا منزل ته روان دي –

(۸۸) د یو سړي د ښۀ کېدو معیار د هغه سوچ پورې نۀ ده تر څو چې ئې په معیاري کسوټۍ جاج نۀ وي اخستے –

(۸۹) د مال اسباب نه ډک ژوند د ذاتي شعور د اثبات نه بغېر بې معنې دے –

(۹۰) اول مخکښې ځه چې بره لاړ شے نو د ښکته معاملات حل کول به اسان شي –

(۹۱) چې اوسط معامله ټېک شي نو بیا په هغو معاملو کښې توانائي خرچ کوه چې تاسو ته به حقیقي فائده درکړې شي –

(۹۲) کۀ چرې تا لوے لوخے نۀ وي اخستے نو د زیات طلب به یوه غلطي وي –

(۹۳) خپل اصل وپېژنئ او د دې تقویت هم –

(۹۴) ستاسو عملونه نتیجې پېدا کوي چې لکه د سیورو پشان تاسو پسې ګرځي –

(۹۵) د مشابه (هم شکل) څیزونو باره کښې هوښیار اوسئ –

(۹۶) د ترقۍ په طرف درجه به درجه مخکښې ځه چې ستا مضبوطیا قائمه وي –




(۹۷) تاسو چې خپل باطن او خارج کښې څۀ جوړوئ د دې حاصل يو پکار دے –

(۹۸) خپلو جذباتو او احساساتو ته مناسبه لار ورکوئ -

(۹۹) ژوند کښې د راپېښېدونکو حادثو نه د بچ کېدو د پاره خپل دننه نقصونه لرې کړئ –

(۱۰۰) د جسم نه علاوه د خپل موجودګۍ احساس پېدا کړئ –

**-- تمت بالخير--**

